ثالث باالخیر حکومت جوړوی او کله صدای امریکا. وجمهٔ داده چې دلته یوه خالیګاه موجوده ده. له همدغې خالیګاه نه‌په‌استفادی سره هغوی ګوري چې مونږ ته‌حکومتونه جوړوی. زموږ ملت‌داده نه دی، تشویش‌لری او دشمن هم له دی نه استفاده کوی. که مونږ سرله اوسه دملت په خوښه شورا جوړه‌کړو، چې ملت پـه چا اعتماد کولو هغه ئې راوړاندی‌کړ، زمونږ تول قـوم به داده اومطمئن وی له دی نه‌به تشویش نه لری چې روسان ووتل څه‌به کیږی. دهغه داتشویش تول‌رفع‌کیږی. هغه‌به‌تیار داسی یو څوک لری چه دهغوی ترشاو دریږی. همداراز دتولو هغو توطیئو مخه به‌هم نیول‌کیږی کوم چې غواړی زمونږ په ملت باندی خپل دلخواه قیادت تحمیل کړی.

داچی موږ ته حکومتونه جوړوی، ددې تولو مخنیوی به کیږی. همداراز دیوی‌منتخبی شوراپه نتیجه‌کی زمونږ جهاد دستر بین‌المللی اعتبارنه برخمن‌کیږی. دنیاپه دی باندی داده‌کیږی‌چی مجاهدین دحکومت کولو استعداد او کفایت لری. دنیـا کی هم داسوال‌دی، فکرکوی چې که روسان ووزی‌شاید خانه جنګی‌وشی. داخلی جنګونه پیل‌شی. خونریزی وشی، خوکه مغه وګوری چې نه، په‌مجاهدینوکی دومره‌کفایت، اهلیت او درایت شته چې‌هغوی دی دغه خپله پیچیده مسئله دخپل قوم پواسطه حل‌کړی. په‌دی ترتیب زمونږ جهادته دیرلوی اعتبارحاصلیږی.

زه یقین لرم چې دافیصله زمونږ په جهادکې تربلې هرې مسئلې نه ستر اهمیت لرې. له تولو نه علاوه که دا ئن مونږ خپله فیصله ماته کړو ـ او دنیا یوځل بیاو اورې چې دوه هفتې مخکې چې مجاهدینو کومه فیصله کړې وه، بعضې تنظیمونو دافیصله ماته کړه اود احزابو د مشرانوترمنځ په دې فیصله باندې بیرته اختلاف رامنځ ته شو مونږبه بیا دنیاته په کومو سترګو ګورو! مونږته به څه حیثیت پاتې وی. دا دجهادمشران، داحزابو رهبران ئن کینې په خپلو منځونوکې په یوه خبره باندې تعهدکوی دنیاته یې اعلاموی اوسبائې بیرته ماتوی. زمونږ جهاد ، ملت او قوم ته به څه اعتبار پاته وی؟ زمونږ په خلاف په دنیاکې داتبلیغات کیږی چې افغانان خوجنګ کولای شی، خوسیاست نشې کولای. ددې وجه داده چې غواړې جنګ مونږ وکړو خو په سیاسې میدان کې فیصله هغوی وکړی اوبیا خپله فیصله په مونږ باندې تحمیل کړی. دلیل هم لرې چې افغانان خوجنګ کولای شې خو سیاست نشې کولای او په دې خبره بالدې ، ونږ سندور کوو چې ربښتیامونږ جنګ کولای شو خوسیاست نشوکولای. ئن مویوه خبره، سبا بله خبره. ئن تعهد کوو سباته ئې ماتوو. دابه ددې جهادلپاره لویه بې حیثیتې اوبې اعتبارې وی. زمونږ انتظار داؤ چې داشرانو به په خپل تعهد ټینګ پاته کیږی. لکه څنګه چې ئې له دنیا او

خپل قوم سره تعهد کړی، په خپله وعده تینګ پاته شي. خوزه دا انتظار هم لرم چی زموږ قوم نه باید دغسی وی چی هرڅوک دمخه په سرنوشت باندی لوبی وکړی دغسی خلکوته باید موقع ورنه کړه شی. داملت به د دغسی چاپه‌خلاف ودریږی کوم چی له دی فیصلی نه انحراف کوی. زموږ ددی جلسی یوهدف دادی.چی دقوم ټول مشران خپلو خلکوته داخبره ورسوی، چی دا زموږ دمشرانوفیصله وه. دټولو احزابو فیصله ده په دی فیصله به خامخا عمل کوو. کله ټولو کمپونونه داسی تحریک را اوچت شی د کمپونو ټول مشران را غونډ شی په خپلو منځونوکی مشترکه فیصله وکړی اودی احزابوته ئی هم راولیږی. چی‌مونږ‌له‌تاسو نه‌په‌دی فیصاه‌باندی عمل غواړو.ځکه‌دا زموږدټولودردونود مشکلاتو دحل یوازینی‌لاره ده.تعهدموکړی په‌خپل‌تعهد باندی‌تینګ‌پاته‌شی.یریږدی‌په قوم‌باندی‌اعتمادوکړی. داقوم چی داسلام لپاره ئی یوولس لکــه شهیدان ورکړی. پنځه ملیونه مهاجر شوی دی دا قوم انشا' الله‌دومره درایت او ایمان لری‌چی‌اهل اوپاکفایته خلک تشخیص کړی اوپه‌هغوی اعتماد وکړی اوهغوی رامخ ته‌کړی. مونږ باید پــه کمپولوکی دغسی فکرراپیداکړوچی دټولو کمپونو مهاجرین ددی مطالبه وکړی. چی دادټولو احزابو کله فیصله ده دنیا تـه هم‌دا فیصله اعلان شوی د احزابونه زموږ مطالبه پــه کلکه داده چی په دی

باندی په عمل کوی. ددی نه به څوک نه شاته کیږی. ددی په څوک مخالفت نه کوی. زه په دی هکله چی زموږ څهدوستان اوس دهغوی عقل سرته راغلی او اوس دی کارته متوجه شوی چی داکار شرعی ده اوکه نه؟ ددی لپاره څه شرعی بنیادونه شته اوکنه؟ لومړی ددغه ورونو، دوستانـــو ددی تشویش په هکله زه مختصربحث کوم دامیر د انتخاب لپاره په قوم کی څو طریقی کیدای شی. چی مختلفو مذاهبو اومختلفو مکاتبو دځان لپاره هغه بنیاد کرځولی. یاداچی دادیوی معینی کورنی حق دی له پلارنه دی اولادته په میراث پاته کیږی. که په کورنی کی نارینه نه وُ پاتی، ښځو ته هم داحق انتقال کیدای شی. لکه چی ظاهر شاه په قانون اساسی کی لیکلی وُ. که؟ له پلارنه زوی ته، همدغسی یوپه بل پسی که په ټول ټبرکی اوکورنی کی نارینه نهٔ دهغه لورهم کولای شی دملک پاچاهی په لاس کی واخلی.

په دغه فیصله باندی پرون چا اعتراض ونه کړ!! ولی نه ویل چی داغیر اسلامی ده؟ څنګه په قانون اساسی کی دغسی داسلام پر خلاف صریح خبره لیکل کیږی. چا اعتراض ونه کړ لکه دا اوس چی په هندکی کوری دګاندی کورنی ته داسی یوپه بل پسی باید اقتدارانتقال شی. لورنی وی، ښځه نی وی، زوی نی وی دا بایدله یو نه بل ته انتقال شی. یوه طریقه داده خو اسلام ددی مخالف دی. بله طریقه داچی دادقوم ته پریښودل شی قوم چی په چا اعتمادوکړ هغه د

حکومت جوړ کړی. اسلام دغه لارغوره کړی. د امیر دټاکلوحق
ئی قوم ته سپارلی دقرآن‌عظیم الشان داآیت چی ماپه ابتدا٬ کی
تلاوت‌کړ. په تول صراحت سره دامطلب‌واضح کوی.
ان‌الله یا٬مرکم ان تؤ دواالامانات الی اهلها یقیناً خدای
تاسوته امرکوی (تاسو تولوته ای مسلمانانو) یا٬ مرکم ای
مسلمانانو تاسوته یقیناً خدای امرکوی پەدی خبره چی امانتونه
اهل ته وسپاری. او دلته د امانت نه مراد د حکومت واگ
اواختیارات اواقتدارده څکه وروسته‌دامطلب واضح کیږی پەهمدی
قسمت کی چی دا آیت راغلی بحث له حکومت ، امیر اوما٬مور
اوله حکمیت نه دی له دی خبری نه بحث په دی سلسله‌کی
روان ده. مسلمانانوته امرکیږی چی امانت بەاهل ته سپاری
دقوم کارداده چی امارت‌به،اقتدار به، قیادت‌به هغەچاته سپاری‌چی
په هغه کی اهلیت وی کفایت وی. دا اهلیت او کفایت قرآن
توضیح کړی. هغه٬چی ددی کار په کولو باندی توانا وي. ددی
قوت ولری استعداد ولری اوامین وی چی‌کوم امانتونه ورته
سپارل کیږی په هغې کی دامین په حیث تصرف وکړی. (ان‌خیر
من استا٬جرت‌القوی الامین) یقیناً ترتولو غوره‌چی ته‌ئی‌دیوکارلپاره
استخدا موی هغه دی چی قوی او امین وی. قرآن عظیم
الشا٬ن بیا دهغو خصوصیات هم بیانوی. دقوم کار دادی چی
امانتونه به اهل‌ته سپاری. اوپیغمبر علیه السلام فرمائی چی چادا

امانت اهل ته ونه سپاره هغې یعنې دخدای سره، دپیغمبر سره اود مؤمنانو سره خیانت وکړ. فرمائي چي که څوک د مسلمانانو په سر امیر وټاکلی شي اوهغه په مسلمانانو باندي دغسي یوڅوک دمقوی له منځه وټاکي چي تر ده نه په قوم کي مستحق اواهل وي وجه چي هرڅه وي یعني دخپلوي په وجه یاددوستي او رفاقت په وجه باندي له قوم نه ئې دغسي څوک انتخاب کړ اوکارئې هغه ته حواله کړچه ترهغه نه غوره اواهل اوبا کفایته سړی وي یعنې چه دی کس دخدای سره دپیغمبر سره اود ټولو مسلمانانو سره خیانت وکړ. دقوم کرداده چه امانت په اهل ته سپاري؛ خوداميروظیفه داده چي هغه به په عدل سره حکم کوي (ان الله یأمرکم ان تؤدوا الامانات الی اهلها واذا حکمتم بین الناس ان تحکموا بالعدل) دي دخلکو تر منځ مو حکومت کاو په عدل سره به حکم کوي دحاکم حق دغه ده او دما موراو د محکوم اوقوم حق هغه ده چه پوهېږم که داحق دخلکو نه وي نوماته وښیاست چي دی څه دی؟ زه غواړم پوښتنه وکړم چي داحق د قوم نه دی دخلکو نه دی، د امت حق نه دی، دمسلمانانو حق نه دی. نوماته وښئی هغه اصل راته پیدا کړی هغه آیات اوحدیث راته پیدا کړی. هغه منبع او مرجع راته پیدا کړی چه اسلام داحق هغه ته سپارلی چي هغه دی امیر وټاکی مانه وښئی چي هغه چیرته دی؟ څوک به ئې ټاکي؟ که دادی امت حق نه وي نوماته هغه منبع

وپنی؟خدای(ج) خو مسلمانانوته امیرا ن نه دی په گوته کړی!!!
په کتاب کې نه دی راغلی په قرآن کې نه دی تثبیت شوی. پیغمبر
علیه السلام چې رحلت کولو په ځائی لاس کینښودو دا ډیره مهمه
خبره ده دی ته په متوجه او ستری پیغمبر علیه السلام رحلت
کوی، بیمارده او حجت الوداع کې ئی اعلان دم کړی چې گوری
چې بیا به سره گورو او که نه! هغه دروننی رحلت کوی، ترټولوچې
څوک په قوم باندی په امت باندی زیات زره سواند لری پیغمبر
علیه السلام دی په دی هم پوهیږی چه که هغه رحلت کوی دامی نه
دی په دی مسئله باندی لوی کشمکش را اوچتیږی. خپلواران
هم پیژنی، پخپله ئی تربیه کړی دی او په خپل لاس ئی روزلی دی.
په دی هم پوهیږی چې ترټولو اهل څوک ده د هر صحابی
خصوصیات هم ورته معلوم دی. ولی هغه دروننی خود قوم لپاره
هغه جانشین نه تاکی دقوم لپاره خاینه نه تعین کوی. نامزد کوی
ئی نه په چا باندی لاس نیردی چه داد زما نه پس ستاسوامیروی
آیا د پیغمبر علیه السلام دا روش زمونږ لپاره سنت نه دی ؟
مونږ دی ته نه متوجه کوی چې داد قوم حق ده په دی خاطر،
پیغمبرعلیه السلام پخپله نه دی ټاکلی؟ دا ئی امت ته پریښی چې
د خپل مسئولیت په اساس څوک چې لازم وگنی هغه
انتخاب کړی که پیغمبر علیه السلام دا ټاکلی وای چې لومړی
دی داوی، دوهم دی داوی، دریم دی داوی، څلورم دی داوی

چابه‌مخالفت کړی؟ شاید مونږ داسې فکر وکړو چې کنې په دې
تول مشکل حل شوی وای چې مخکې له مخکې پیغمبر علیه
السلام د تولو نوموړنه اخیستې وی. چې لومړی خلیفه به داوی،
دوهم به داوی، دریم به داوی څلورم به داوی د دې تولو نوموړنه به
نی اخیستي‌وی او دا به نې مخکې له مخکې تاکلې وی قوم ته به نې هم د دې
اعلان کړی‌وی، هیڅ شک به نې هم نه وای پرېښې مسئله به حل
وای مونږ داسې فکر کاوه چه په دې ترتیب به هیڅ مشکل نه
راپیداکیده ولې پیغمبر علیه‌السلام دا لویه مسئله‌هم‌د غسې مجهوله
پرېښوده له قوم ته نې حواله کړه چې دا به تاسې په خپله تاکئ.
د پیغمبر علیه‌السلام جنازه پرته ده قوم راغونډېږی او د دې مسئلې
فیصله څنگه کېږی ماته وښئ؟ آیا چا داسې وویل چې قرآن وائی،
پیغمبر علیه‌السلام وائی چې پلانی کس دې امیروی او که داسې
دې‌چه قوم په خپلو منځونو کې مشوره کوی او د شوراپه نتیجه‌کې
یو کس تاکی تولو د حضرت ابوبکر صدیق(رض) په هکله اتفاق
کړی. قوم په اتفاق سره حضرت ابوبکر صدیق (رض) انتخاب
کړی. او ماته دا هم وښئ چې د حضرت ابوبکر صدیق (رض) په
انتخاب‌کې له قوم نه معین کسان راغونډ کړی شوی دی او که
د مدینې تول هغه خلک. څوک چې حاضرو راغونډ شوی او که‌په
ابتداکې څه‌جراو بحث شوی‌چې‌څوک دې وی د کوم قوم‌نه دوی؟
د مدینې نه‌دی‌وی؟ انصارو نه‌دی وی؟ د مهاجرینو نه دی وی؟ حضرت

ابوبکرصدیق(رض) دی‌وی که‌حضرت‌عمر(رض)دی وی که څوک دی‌وی؟ خوبالاخره ټول قوم اتفاق‌کوی‌چی حضرت ابوبکر صدیق(رض) دی خلیفه شي. ګوری‌دپیغمبر علیه‌السلام سنت هم مخی‌ته پروت دی دصحابه و روش هم‌شته‌د ابوبکر صدیق (رض) د انتخاب طریقه هم زموږ اوستاسی په‌مخ کی‌ده واضح، چی یک څه ابهام، شک اوشبه‌هم‌نشته که له‌دی نه خلاف خبره‌وی ماته دی وبنئی؟ څوک‌دیو دلیل په ګوته کی چی دهغوی رښتیا هم ددی‌خلاف‌کوم بل صورت‌دکارهم شته حضرت‌ابوبکرصدیق(رض) په دی شکل وټاکل‌شو. څلور خلیفه‌ګان په څلورو طریقوانتخاب کیږی. داموږ ته څه ثابتوی؟ څلور کسان انتخاب‌کیږی خوپه څلوروطریقو! داموږ تەبنئی چی دا امت ته پریښودل شوی چی څنګه هم دهغوی مصلحت اوحالت ایجابوی دحالت مطابق به دخپل مصلحت مطابق به په دی حصه‌کی تصمیم نیسی. دی نه علاوه د حضرت عثمان (رض) په هکله فیصله څنګه و شوه؟

حضرت‌عبدالرحمن ابن‌عوف‌ته خبره‌وسپارل‌شوه چی‌هغه‌دی‌دمدینی له‌خلکو نه تپوس وکړی چی اکثریت په چاباندی راضی دی. هغه دټولونه تپوس‌کوی راضی اووائی‌چی دمدینی اکثریت خلک د پیغمبر علیه‌السلام اکثر صحابه په حضرت عثمان (رض) باندی راضی‌دی. داکثریت په اساس‌باندی‌دحضرت‌عثمان(رض) دخلافت فیصله‌کوی. دصحابه وپه دور کی هغه چی داسلام په مزاج

ترتولوړه پوهیږي، هغه چې پیغمبر علیه سلام روزلي ؤ هغه چې
دهغوی په باب وائي چې ټول الګو دي اوهغه دآسمان دستورو
په شان دي چې په هریوه پسې دې اقتداوکړه لار دوموندله کنه!
دهغوی په دورکې فیصله کیږي داکثریت په بنیاد خلیفه ټاکل
کیږي. اواوس یوڅوک وائي چې د آکثریت اساس خوپه اسلام کې
نشته. مانه دي لیدلي، زه نه یم خبر. حضرت علي (رض) ته څه
کسان کورته ورغلل، ورته وئې ویل چې موږ له تا سره بیعت
کوو. نه دخلافت ټپاره وړئ. هغه وویل چې دادجماعت کاردی..
داخبره به په جومات کې کوو ددې فیصله بهلته کیږي په کورکې
هغه له چانه بیعت وانه خیست. په دې خاطرچې داڅه دمحدودو
کسانوکارنه وه چې کښیني نه په خپلو منځوکې به فیصله کوي وئ
حضرت علي (رض) ددې خلکو پیشنهاد ردوی؟ او وائي که ددې
خبرې فیصله کیږي نودابه په جومات کې کیږي دخلکوپه وړاندې به
کیږي. داپه دې خاطر چې دادخلکو حق دی. ددې فیصله به خلک
کوي امت به ئې کوي. دادافرادو داحادو حق نه ده. هم هغه
امیر چې دهغه سره بیعت ونشي دهغه امارت مسلم نه ده اسلام
دغسې وائي. کوم امیر سره چې قوم اوملت بیعت ونه کړي
دهغه امارت غیرمسلم ده. دهغه امارت نه دی مسلم. اسلام موږ ته
نه یوه ستره طریقه په ګوته کوي.




بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی اما بعد :
فاعوذ بالله من الشیطن الرجیم.

ان الله یأمرکم ان تؤدو الامانات الی اهلها واذ احکمتم
بین الناس ان تحکموا بالعدل. ان الله نعما یعظکم به
ان الله کان سمیعاً بصیرا. صدق الله العظیم.

د قومونو مشرانو سپین ږیرو او علماؤ ورونو! السلام
علیکم ورحمة الله وبرکاته!

زه ترټولو دمخه مشرانو ورونوته دحزب اسلامی افغانستان
نوی دفترته دراتللو له امله ښه راغلاست وایم. له خدای (ج)
نه ټولوته اجر غوارم چی د دوی په دی ګرمو ورځوکی مو
له لیری لیری ځایونونه دراتلو زحمت قبول کړ، ترڅوپه دغه
جلسه کی برخه واخلی، خدای(ج) دی ستاسی دغه زحمت اوتکلیف
په جهاد سره وشمیری اوخدای دی درته اجردرکړی.

ستاسی دازحمت قبلول داثابتوی چی الحمدلله زموږ قوم اودهغوی
په رأس کی مشران د جهاد په نسبت، خپل شور، شوق او جذبه،

دیوکارسره مخامخ شوی په‌دی باب څه نص‌هم درته‌معلوم نه‌دی. کتاب‌الله‌کی‌هم څه نه‌پیدا کوی دپیغمبر علیه‌السلام، اقوالـو، اعمالوکی هم ددی لپاره څه اصل اوځه‌بنیادنشی موندلای پیغمبر علیه‌السلام فرمائی چی‌په‌دی صورت‌کی دځان سره مشوره‌وکړه‌که پوازی وی‌ځان سرمشوره وکړه اوکه نه‌وی دسواداعظم پیروی به‌کوی. شخصی امورو‌کی دځان سرمشوره وکړه.ضمیرته درجوع وکړه.حتماً بهستاوجدان تاته لارښی‌په‌اجتماع‌کی به‌داکثریت‌پیروی کوی.په‌دی‌باندی دوسره تاکید شوی چی دپیغمبر علیه‌السلام‌کی ډمیراحادیث دی.چی‌فرمائی څوک چی‌له اجتماع نه‌لری شومنظور له‌اجتماع‌نه‌لری‌کیدل دغه دی چی داکثریت لاره‌غوره نه‌کړی‌او ځانته یوشاذه اونادره یوازی لاره انتخاب کړی. هغه گمراه‌شو. هغه اورتـه ولویـده هغـه بـه شیطان دوکه کوی اودی‌کی متعدد احادیث دپیغمبر علیه‌السلام دی اوزه ئی مفهوم تاسی ته‌وایم. لـه رمی نه‌چی یوه وزه‌گوښه شی‌نولیوه‌ئی خوری پیغمبر علیـه الـسلام فرمائی‌که دغسی له‌یوی اجتماع نه‌گوښه شوی شیطان دی دوکه کوی.اوچاچی‌شذوذ وکاوه‌ځانته‌ئی بیله‌لاره‌غوره‌کړه‌پیغمبر(ص)فرمائی چی هغه‌لاړاورکی‌ئی سقوط وکړ. فرمائی چی‌په‌دی صورت‌کی بـه‌دی اکثریت پیروی‌کوی دامت داکثریت دسواداعظم‌پیروی به‌کوی‌د پیغمبرعلیه‌السلام صریح حکم دمچی هیڅ‌څوک هم دعلماؤ نه‌په‌دی کی‌شک‌نه‌شی‌کولای. اعتراض نشی‌کولای. زه‌نه‌پوهیږم‌چی‌پیغمبرعلیه

السلام پخپله‌حکم کوی چی‌په‌دغسی حالاتوکی به‌دسواداعظم ‌ایروی کوی زه‌نه‌پوهیږم چی‌موږ څنگه‌ځان‌ته‌ددی جرئت‌ورکووچی ددی خلاف‌فیصله‌وکوو اوداعالم‌په‌حیث باندی داووایو چی‌ماته‌خوداله ده‌معلومه‌چی‌مسلمانان دمکاف وی دا اکثریت په‌پیروی‌باندی.زه‌نه پوهیږم چی‌دیره عالم په‌حیث باندی‌سړی‌څنگه ددی جرأت دولای شی‌چی داسی خبره وکړی ددی لپاره تاریخی نمونه داحد دجنگ نمونه ده دجنگ په‌باب مشوره‌د پری قریشو‌ئوی لشکر برابر‌کړی. پیغمبر علیه‌السلام خپل صحابه راغونډوی د جنگ په‌باب اصلا نیسی پیغمبر علیه السلام او دهغه د جایل القدرو بعضو مشرانو اصحابو‌رایه داوه چی جنگ باید دمدینی له‌داخل نه‌وشی ‌دلته‌باید دفاعی حالت غوره‌کړوچی هغوی تعرض‌کوی موږمقاومت وکړو. د مدینی بهرو‌ته وزو. ولی دځوانانو داکثریت رایه داوه چی‌نه‌دانبو به موږته د پیغور خبره وی چی موږ خپل کورکی مقاومت‌وکړو داکثریت غوښتنه داوه چی دمدینی نه بهردا حددغره په‌امورکی ددښمن مقابله‌وکو. د خدای پیغمبر چی داټول په هغه ایمان‌لری اودهغه‌هرحرف ته‌غوږنیسی. هغه‌مبارک چی‌گوری داکثریت رایه داده چی له مدینی ته‌بهر ددشمن‌مقابله وکړو. گورته دروی زره اغوندی اوله خپلی‌رائی نه تیریږي. دخدای پیغمبر دا اکثریت په خاطرله‌خپلی رائی‌نه تیریږی. داخوډیره ستره نمونه‌ده.ژوندی‌نمونه عملي‌مثال. داحد جنگ واقع‌کیږی (۷۰)کسان صحابه په‌شهادت

رسیږي دجنګ نه بعد دپیغمبر علیه السلام سره دافکر پیدا کیږي چي ددغو کسانو مشوره مي ومنله حي دیو دغسي حالت سره مخامخ شوم مجږدي چي دافکر د هغه په خیال کي ګرزي قرآن عظیم الشان دغه ته هدایت او توصیه دوي فبما رحمة من الله لنت لهم ولو كنت فظا غليظ القلب لانفضوا من حولك فاعف عنهم واستغفر لهم وشاورهم في الامر فاذا عزمت فتوكل على الله ان الله يحب المتوكلين. دخدای د رحمت په وجه باندي هغوي ته نرم شوي که ته خوي او غلیظ القلب وای نو داخلک به ستا له ماحول نه پراګنده شوي وو خوار شوي به وو هغوي ته عفو وکړه، اشتباهات ور نه شوي دوي ته بښنه وغواړه. خو ددوي اشتباه ددي باعث نشي کیدلای چه هغوي دله خپل مسلم حق نه محروم کړی شي، په کارونوکی ورسره مشوره هم وکړه. د ... سوي د آل عمران داحد دجنګ نه بعد نازل کیږي او په جنګ باندي تبصره کوي د تبصري په دوران کي دغه مسئله کي په دغه شکل حکم کوي. حتی دهغوي دا کثریت درایي مطابق عمل شوي شکست واقع شوي پیغمبر علیه السلام فکر کوي چه ددوي دمشوري په وجه باندي دغه شکست واقع شو چي ددي نه بعد بهتره ده چي ددغسي کسانو په رایه باندي عمل و نه شي. ولی قرآن عظیم الشان مداخله کوي او فرمائي، هغوي ته عفوه وکړه، بښنه وغواړه، په کارونوکی له هغوي سره مشوره وکړه وشاورهم في الامر، امر ورته کوي په هغوي سره په کارونوکی مشوره کوی. داخبره ثابتوي چي مشوره کول او بیاد مشوري په اساس دا کثریت

فیصله‌ئل ددارالاسلام یو اصل دی. بعضی کسان دارایه هم وراندی
کوی چی گویا دشورا فیصله په امیر باندی ملزمه نه ده. دارایه هم
اوس وراندی کوی، هغه امیر صاحبان چی غواړی مطلق العنان واوسی
هرڅه د هغه په اختیار کی وي بس هغوي نو کوشش کوي چی دشوری فیصله
په هغه باندي ملزمه نه وي او پوه پوه چی ددی وجه څه ده آیا وجه‌ئی
داده چی رښتیا هم په اسلام کی ددی لپاره هغه کوم نص موندلی، کوم
دلیل ئی پیدا کړی چی دشورا فیصله ملزمه نه ده او که هغه غواړی چه دشورا
فیصله دی په هغه باندی ملزمه نه وی. هغه چی څنګه غوښتل هغسی
دی فیصله وکړي هغه کولای شی دځپل ټبر ترماشومانو پوری هم
په ورو باندی مسلط کړی. ټول امور د یو ټبر په لاس کی واوسیږی
خورئی، ماما، کاکا او د تره زامن، وراره، زوم دا ټول دی باید په ټولو
مسلمانو پوستونو باندی مکلف کړی حال داچی پیغمبر علیه السلام
او د هغه نه بعد دوو خلفاؤ یو په بل پسی دځپل ټبر او خپلوانو نه یو کس
هم نه دی ټاکلی، جنګ ته ئی وراندی کول خو امور د مسلمانانو ئی
ورته نه سپارل پس په یو دلیل او بل دلیل ئی هغوی نه راوراندی
کول، د پیغمبر علیه السلام په دورکی هم هغه د ټبر نه، دقوم نه، خپلو
نږدی خپلوانو نه څوک دمسول په حیث ونه ټاکل، جنګ ته ئی وراندی
کول. د جنګ په دوران کی به ئی ترټولو مخکی په هغوی باندی غږ کولو
او رامخ کی کول ئی خو که به چی دکارونو دسپارلو مسئله راورسیده هلته




بهٔی دخپل تبر کسان نه‌راوړاندی کول.څه کسان دغسی تبلیغات
هم کوی چی دشورا فیصله ملزمه نه‌ده‌زموایم که‌دشورا فیصله‌ملزمه
نه‌وي بیاشورا هیڅ‌ارزښ‌نلری‌هیڅ‌اهمیت نه‌لری. بیاشورایعنی څه؟
دشورامعنی‌خوداده‌چی‌اصلاً‌دشوراغړی دقوم‌وکیلان وی‌که تول‌کی
برخه‌اخلی هریودڅان نمایندګی کوی. اودهغوی مشترکه فیصله
وروستی دټولوترمنځ تعهدده. دغه‌قرارچی‌په‌خپلومنځونوکی‌په‌عادی
مسئلوکی اهمیت لری څنګه‌کیدلای شی‌چی په‌ستړو، قومی، ملی
مسایلوکی، اجتماعی مسایلوکی‌دی‌هغه‌بی‌ارزښه‌وی. ددوکسانوترمنځ
په‌خپلوکی سره تعهدکیږی دا ارزښ لری خو په لویه اجتماعی
مسئله‌کی دقوم وکیلان چی دشوراغړی‌دی چی‌دټول قوم‌نمایندګی
کوی.دغه دا کثریت په‌یوشی باندی اصرارکوی اوددوی فیصله
دارزښ‌ونه‌لری‌اوداسیرصاحب‌فیصله‌دی‌ارزښ ولری داڅنګه‌کیدلای
شی؟ دابیل‌بحث‌دی. چی‌تفصیل‌یی وخت‌نه‌ضرورت‌لری‌چه دخلفای
راشدینوروښ څنګه واود پیغمبر علیه‌السلام روښ څنګه وُ یو
نمونه ماتاسی‌ته‌وړاندی کړه.دپیغمبر علیه‌السلام دخپل ژوند داحد
په‌جنګ‌کی چی هغه له‌خپلی رایی نه دا کثریت درایی په خاطرتیر
شوی اوداکثریت رایه‌ئی منلی وه اود فیصلی دعملی کیدلونه بعد
هم‌چی‌په‌دی باندی هم‌غیرمطلوب نتایج‌مرتب‌شوی‌او تصوروړسره
پیداشوی چی شاید دا ددوی دستوری په‌وجه باندی وی. ددی
نه‌بعدبه مشورمونه‌کړی. خدای(ج) ورته‌حکم کوی چی نه (وشاور

هم فی‌الامر) له‌دوی سره به‌په اوروکی مشوره‌کوی (تکبیر) که‌زه همدی باندی اکتفاکوم، وروښوته زماعرض دادی چی‌مونږ په‌دی فیصلی‌باندی ټینګ ولاړیو په خپل‌دی‌عهدباندی وفاکوو غواړو چی داانتخابات دی‌ترسره شی. په‌دی باندي ټینګارکـــوو‌چی دا منتخبه شورادی‌ژرترژره جوړ‌شی‌اوچی‌قوم په‌چاباندی‌اعتمادوکړ‌نو موږ‌هغه منو.زه‌اوس دخپل ملت په‌فیصلی باندی باورلرم انشاءالله هغه‌به داسلام په‌خلاف فیصله نه‌کوی څنګه به‌باورنـه کوم؟ یو قوم‌چی دومره ستونزی، تکلیفونه، کړاونه، زحمتونه،قربانی داسلام لپاره تحمل‌کوی. (و) کله په‌مسلسل جنګ‌کی تیرشوی ددغـــی قوم په‌فیصله باندی بەولی سړی اعتمادنه‌کوی؟ مونږ دقوم‌فیصله منو. زمونږ په‌خلاف الزام داڅ، تبلیغات دغسی کیدل چی حزب وسلی ذخیره‌کوی اواوس هم‌خپل حریفان تکوی چی‌څنګه روسان ووزی نوهغوی به‌په قدرت باندی قبضه‌کوی. خـدای خبرچی له خپلو حریفانو سره به نوڅه کوی!!؟ بی‌بی‌سی‌هم دغسی تبلیغـات په‌موږ پسی کول په دی کمپونوکی بـه هم دغسی تبلیغات په مونږ پسی روان وچی حزب جاه طلب دی. خواته بل‌څوک نه پرېږدی غواړی چی خپل حریفـان و تکوی نن هم دا دی لګیادی او د آینـده لپاره نی ځـان بـرابـر ډیری . وسایل‌نی هم ذخیره‌کړی زمونږ په خلاف تبلیغات همداسی وکنه! خووروڼو! دغه‌دی تاسی‌شاهداوسی په‌دغه جومات‌کی مونږاعلان

کوم چې موږ نه غواړو د وسلې په زور ځان په خپل قوم باندې تحمیل کړو. موږ نه غواړو چې د روسي پوځونو د تللو نه بعد ځان په قوم باندې تحمیل کړو. موږ نه غواړو چې د روسي پوځونو د تللو نه بعد دې د مسلمانانو وینې توئ شي. موږ غواړو چې د دې فیصلې د قوم ته پرېښودل شي زه یو ځل بیا د تاسې ټولو په وړاندې دا خبره اعلانوم دا تاسې ته یو لوی امانت دی دا به ټول قوم ته رسوی، موږ نه غواړو «حزب اسلامي» نه غواړي چې دې د مجاهد لاس نه دې د بل مسلمان په وینو سره شي. موږ نه غواړو چې د روسانو د تللو نه بعد دې د مسلمانانو ترمنځ د اقتدار لپاره وینې توئ شي. موږ دا نه غواړو چې د وسلې په زور ځان په قوم باندې تحمیل کړو. موږ چې په جبهه کې هم وګورو چې کوم قوماندان په زور باندې په نورو باندې قوماندانی کوی هغه خلع کوو هغه لرې کوو. موږ وایو تر هغه به قوماندان وي چې مجاهدین یې منی چې مجاهدینو ته منلی نه وي په عوض به بل څوک ټاکو زه موږ په داخل د حزب کې دا نظم دی د امیر په حصه کې موږ انتخابات کوو پوښتنه کوو که اکثریت خلکو ما ته امیر به وی که نه بل څوک به راوړاندې کوی حزب کې هم دغسې کار کوو تاسې ته معلومه ده په قوم کې هم موږ دغه کار کوو. که قوم په ما باندې اعتماد وکړ موږ د هغه حکومت تسلیموو د هغه حکومت منو. وروڼو! څوک چې د دې فیصلې مخالفت کوی په دې خاطر باندې چې هغه بربنډ نشي، قوم هغوی نه پېژنی دنیا ته معلوم نشي چې هغه په قوم کې څومره اعتبار لري په دې

خاطر ددی انتخاباتو مخالفت کوی.وجه ئی دادمچی که انتخابات وشی قوم په هغی باندی اعتماد نه کوی قوم دجهاد بـه دوران کی هغه واز مایه قوماندانانوئی وسلی خرڅی کړی، مامور یتونی خیانتونه و کړل، اوس هغه فکر کوی چی که فیصله قوم ته وسپارلی شی دقوم فیصله به خامخا زما په خلاف وی. په دی خاطر هغه حاضر نه دی چی هغه دقوم سره مخامخ شی هغه نه غواړی چی قوم دی دده په باب فیصله و کړی په دی خاطر ئی مخالفت کوی. داکس باید په دی هم پوه شی چی یه دی ترتیب غواړی چی روسان ووزی نوداحزابو ترمنځ دمسلحانه اخ ودب شروع شی، زمخو دغسی فکر کوم چی مونږ اوناسوته دوه لاری پاتـه دی :

یادا انتخاباتو لار دقوم دخوښی سره سم حکومت جوړول او یادوسلی په زور دقدرت دلاس ته راوړلو کوشش کول، ددی دوو لارو نه به بوه لار انتخابو کومه یوه لار به انتخابوو؟ مونږ دالومړی لار انتخابوو قوم ته ئی پریږدو چی قوم په چا اعتماد و کړ هغه دی حکومت جوړ کړی زمونږ فیصله داده. څوک چی ددی فیصلی مخالفت کوی هغوی دا بله لاره غوره کوی. هغه بـه دسبا ورځو دپیښو مسئول وی کـه سبا جنگ کـړی. دامسئولیت به دخدای په وړاندی او دقوم په وړاندی دهغوی په اوږو وی زما ورونو سبا به د خدای په وړاندی هغه مسئول وی، اودقوم په وړاندی هم که وینی توئیږی مسئولیت به دهغـه په اوږه وی زمخو ته داخبره هم کوم چی څوک ته دا کثریت په اساس نه منی

نوداخو سبا دوسلوپه‌زورهم مجبوري چي ونې‌مني.څوک چي په قوم
کې اکثریت لري نوکه تا د جنګ لاره غوره کړه نودوسلې
په زور او د خپل قوت په زور به سبا هغه مني. ستاخیر
اوستا آبرو خوپه دې کې دمچي دقوم فیصلې ته تمځم تسلیم شې.
اوکه د جنګ لاره د غوره کړه په دې کې هم څه نشي ترلاسه
کولای. ضعیف اوناتوانه چي‌په قوم‌کې اعتبار نلري هغه دجنګ
لاره غوره‌کوي دابه لیونی نه‌وي؟ ناپوه، جاهل به‌نه وي؟ چي
ضعیف هم‌وي په قوم‌کې نفوذ هم‌نلري هغه‌دروغي‌جوړي اوصلحي
په‌عوض باندې دجنګ‌لاراتنخابوي. زه‌خویقین لرم چي هغه جنون
انډیستي دې هغه نه‌پوهېږي‌دهغه خیرپه‌دې‌کې دی چي هغه‌دروغي
جوړي اوصلحي لارغوره‌کړي نه دجنګ. متأسفانه زمچي‌ګورم هغه
دجنګ لاره غوره کوي. ضعیف احـزاب ددې فیصلې مخالفت
کوي. فکرکوي چي تریوموخته پوري به‌هم‌دهغوي پرده‌خوندي
وي، کنه، داچي یوځای بل‌ځای خلکوته وایي چي له مونږ
سره اتیازره مجاهدین دي تاسوته نه وایي، هربوته چي لاړشي او
دپیسودراتولولولپاره هلته بیاوایي چي‌له مونږسره (. . . . ۸)اتیا
زره‌مجاهدین‌دي، ماسره څلویښت زره مجاهدین‌دي دری‌سوه جبهې
دي کنه؟ قوم ته‌دا خبره په دې‌خاطرنشي‌کولای چي قوم‌ته دده
حقیقت معلوم دی. خو په بهرکې به څوک ور باندې ثابته کړي
چي‌ته درې سوه جبهې نه لرې. اتیازره مجاهدین نه لري هغه هم
چي‌ګوري‌ثقه ده. ظاهري‌همدغسې‌دي‌چه‌ګمان‌کوي دروغ به‌نه‌وائي د

مجاهدینو نمایندګی کوی. دمجاهدینو په نسبت هغه یومخامخ عقیده
هم لری او خلکه‌ئی په‌هغه‌په‌خبر وباور کوی چی رشتیا کله‌دی که نه‌دی
هم‌دغه‌دی. داکسان ددی فیصلی مخالفت کوی. خوزمونږ فیصله
هم‌دغه دمخه وروسته‌ئی‌بیاهم بیانوو. مونږ نه غواړوچی دوسلی په
زور اود خپل قوت په‌زورددی په‌قوم باندی ځان تحمیل کړو. زمونږ
اراده داده چی ددی نه‌بعد دځوک دکودتا په‌ذریعه په‌قوم باندی
مسلط نه‌شی. مونږغواړو چی ددی ریشی قطع کړو. بیا کودتائی
حکومتونه جوړنشی بیاځوک دکودتاپه زورپه قوم‌باندی حکومت
ونشی کولای. موږداغواړوچی له‌دی نه‌بعددی خاندانی حکومتونه
نه‌وی.چی ترلسی اوکړۍسی پوری پنځه اوناریـنـه‌ئی تول بایدپه
خلکو باندی حکومت وکړی. موږغواړوچی خاندانی‌حکومتونه دی
نه‌وی. موږغواړوچی‌دسازش په‌نتیجه‌کی دی‌دپردیوپه زورباندی اکه
بیرک چی په‌ملت‌باندی تحمیل شوځوک په‌قوم حکومت ونشی
کولای چی‌دپردیو تانکونوپه زورباندی په‌قوم ځان مسلط کړی.
موږغواړوچی داحق دملت تەوسپارلی شی زمونږ فیصله داده.دا
حق دملت‌ده غواړوچی داحق ملت ته‌وسپارلی شی. له‌دی نه‌بعد
چی هر حکومت جوړیږی باید د ملت په خوښه جوړشی زموږ دا
نظرده (تکبیر). اوس تاسی‌خپله قضاوت وکړی چی‌ځوک دملت
خیرغواړی اوځوک ځان‌غواړی؟ مونږ داسی‌له‌ملت تـه‌پریږدو.
غواړوچی ملت په‌آزاده فضاکی، دفشارنه بهر ته، لـه تهدیدنه پرتـه

همدغسې ژوندی او قوی ساتلی ده اودجهادله‌پیښوله د خبریدو په‌خاطر دوسره‌لری، لری مزلونه په دی‌گرمو ورځوکی قبلوی او دلته تشریف راوړی. هغه قوم چې اوس ئې کشران، مشران په سنگرونوکې دگولیو لاندی پراته دی‌اوپه سرو تودو سنگرولوکې هغوی د تولو ستونزواوکړاولو په وړاندی صبر کوی دهغه قوم مشران بایدهم همدغسې‌وی. دااوس په افغانستانکې په‌گڼ‌شمیر ولایتونوکې‌سترسترجنگونه‌روان دی.هره ورځ‌په‌لس هاوو او سل‌هاوو کسان شهیدانیږی اوزخمیان کیږی. زه یقین لرم چې انشاءالله زموږ وروڼه، په‌که دلته هغوی په زحمت شول‌له هری ناحیې نه چې وی دابه قبلوی اوله دی نه به نه آزرده کیږی. دکومې مسئلې لپاره چې موږ وروڼوته تکلیف ورکړی. هغه لومړی داتحاد دوروستی فیصلې په هکله وروڼوته څه تفصیلی معلومات ورکول‌دی. بیا د جهاد دروانو پیښو په هکله دجنگی لحاظ او دسیاسی لحاظ نه وروڼوته معلومات ورکول اوبیه پای کی‌هم هغوی خپلو دینی مسئولیتونوته دقوم د مشرانو په حیث متوجه‌کول اودهغوی توجه ورته راارول. دامسئلې دی چې زه کوشش کوم‌په دی جلسه کی وړاندی بحث وکړم نو امیددادی چې هغوی به ددی جلسې خبری په غور اودقت سره واوری. زه کوشش‌کوم‌چې ستاسې په ژبه خبری وکړم ساده، بسیط اوعام فهم. که چیرته وروڼو ته په کومه مسئله کی اشکال پیدا شو

هغه‌دخپل ایمان په‌حکم باندی دخلکوپه‌باب قضاوت‌وکړی اوچی
په‌چائی اعتمادوی هغه‌ته‌دی واګی وسپاری. اوزه ددی خبری اعلان
هم‌ورته کوم چی‌انشاءالله ترڅو چی‌حزب‌وی‌لوشوک به‌په‌دی‌باندی
موفق نشی چی‌دېردیو سره دسازش‌په‌نتیجه‌کی، دکودتاګانو په‌نتیجه
کی په‌ملت باندی حکومت وکولای شی. له دی نه دهم دهغوی
خیال‌فارغ‌وی(تکبیر)ترڅوچی‌حزب وی انشاالله‌دغسی حکومتونه‌به
په‌افغانستان‌کی‌جوړنشی. ددی نه‌هم داده اومطمئن‌اوسی. زه‌په‌دی
باندی‌هم‌باورلرم‌چی‌انشاالله بالاخره‌به دا احزاب‌دی فیصلی ته‌راځی
کمدوی ی اوس مخالفت هم‌وکړی خوبالاخره بله‌لارنشته همدغه
فیصلی ته‌به راځی خوهغه څوک چی‌ددی مخالفت وکړی‌خپل‌قوم
ته‌به څان رسوا کوی.زه له‌دی نه‌پرته بله لارنه‌ګورم. بله‌دغسی
لارچی معقوله‌وی اوزموږ دامشکل‌دی وربانده حل‌شی زه‌نه‌ګورم
پرته‌له‌دی نه‌چی دانتخاباتو په‌اساس دیومنتخب اسلامی حکومت
جوړشی. اوس دانتخاباتو فیصله خوموږ دوه ځله اعلان‌کړه.یو
ځل مود دری لکه‌کسانوپه‌وړاندی اعلان‌کړه چی‌ددنیا ګن‌شمیر
تلویزیونی هیئتونه زموږ مخکی ناست‌ؤ ددنیا په‌ټولو تلویزیونونو
کی‌هم داوښودلای شوچی‌مجاهدینو فیصله‌کړی چی‌دروسی‌یوځونو
دوتلونه بعدبه‌داسی یوموقت‌حکومت جوړیږی چی دابه انتخابات
کوی.دانتخاباتو فیصله‌خوموږ مخکی‌کړی‌وه. داځنګه‌هلته‌اسلامی
وه؟ دوهم‌ځل‌دی‌فیصله‌کوله‌اسلامی‌ده، هغل‌هم‌وه، ممکنه هم وه؟

پېدې کې دې څه شرعي معاذیر هم نه لیدل خواوس دادرته غیر اسلامي
هم ښي، غیري عملي هم وي، اودافکر هم کوي چه لدې نه شخړې او
مشکلات را پیداکیږي ورونو! زه یقین لرم چې زموږ د مشکلاتو
د حل بوازیني لار همداده. شاید که داخبره زه قبوله کړم چې ممکن
د انتخاباتو په دوران کې په یوه کمپ کې دوه کسه لاس سره واچوي.
که دا قبول کړم نه دا احتمال وي اوزه دا ستارایه قبوله کړم چې شاید
په کومه کمپ کې به دوه کسان احساساتي اوجذباتي شي او په خپلو
منځونو کې په لاس سره واچوي. که فرضاً ددې احتمال هم وي زه وایم
د غه معمولي مشکل به د هغه لوی مشکل د رفع کیدو په خاطر قبول
کړو څه پروا کوي. چې سلها وکسان مړي. هغه به بهتروي که
نن هیرده د انتخاباتو په جریان کې دې دوه کسان سره لاس واچوي.
د هغه لوی مشکل د مخنیوی لپاره چې په آینده کې راپیداکیږي که
زموږ د معمولي مشکلاتو سره د انتخاباتو په دوران کې
مخامخ شودا به ومنو ماته ووایه چې کوم مشکلات به زیات وي؟
خوزه یقین لرم چې انشاءالله په کمپونو کې به په دې باندې هیڅ
مشکل نه راپیداکیږي. که مشکل راپیداکیدلای، دا اوس، اوس
هره ورځ باید راپیداشي. زموږ ملت انشاالله دا مرحل تیري کړي
دي. اوس هغه خپله غوښه هلته حل کوي د روسانو سره او د هغه د
التقام اوهیچ اختلوفاي هلته دي. اودوی جنګ سره کړی دی. ره
کوره الحمدلله دې جنګ زموږ قوم سوړ کړی. په جنګ کې هغه تود او

گرم‌دی. خودلته په‌خپلوداخلی مسئلوکی ډیرمسوردی. هیرمطن
او واده او هرسکونه دی. تولی دنیا په دی خبری اعتراف
وکړوانی‌دری لکه‌کسان‌جلسی ته‌راغونډشول خویوه وره پیښه دم
وته شوه(۷)مشرانو خبری هم‌وکړی. دیوچا زیات استقبال وشود
چاکم استقبال وشودچاخبری خلکو اوریدلی اودچاڼی نه اوریدلی.
دچادخبروپه دوران‌کی خلک وتل جلسه‌ئی پریښودله په‌باربارورته
ویل‌کیدل چی کینی، کینی مهمه‌خبرده ولی‌له‌دی تولونه څه‌پیښه
راپیدانه‌شوه. دچاپزه وینی نه‌شوه. دووکسانولاس وانه چاوه.
معمولی مشکل ورنه راپیدانه شو. تولو دنیادی ته‌حیرانه‌دم. دغه
قوم‌چی په‌سنگرونوکی یو لوی طاقت ته‌اووه ورکړی‌دم. (۹)کا‌له
ئی په‌جنگ کی‌تیرکړی،دنیاخوداسی‌فکرکوی چه کله‌په خپلومنځونو
کی هم‌سره‌کینی یوبه بل‌به توپک رااړوی. خوچی هلته‌ئی ولیدل
چی‌دری لکه‌کسان راتول‌شوی‌دی‌په آرامه فضاکی منظم ناست‌یوه
معمولی پیښه هم رااوچته نشوله‌خلک ورته‌حیران‌ؤ ددی وجه
داده چی‌الحمدلله‌دی جهاد زموږقوم روزلی او، تربیه‌کړی‌دم. اوزه
یقین‌لرم‌چی انشاءالله په کمپونوکی به له انتخاباتو نه هیڅ پیښه
نه‌راپیداکیږی. اوبه ډیره سرمفضاکی، ددوستی او وروړگلوی په‌فضا
کی به‌ترسره کیږی. اوموږدمنه لپاره‌لارمهم‌نه پریږدو داسی نه‌ده چه
په کمپونوکی به‌یودبل په خلاف بالدی خلق تبلیغات کوی اویو

بل بەسەمکوموی اورتی بەئی اوخلق بەپەخپلو منخونوکی انتە اباتی مبارزه کوی هسی ه. نه ده موږ ترتولو آسانه لارغوره کړی د او وتنظیمولپاره بەپەهرکمپ کی یکسونه ایښودل کیږی هرڅوک بەیوی کوتی تەآزادځی یوکارت بەئی پەلاس کی وی ددی صندوقونونەچی هرچاته ئی زره وغواړی اچوی بەیی بیابەداآراوی حسابواو گوروبەچەفلانی حزب څونه اخستی دی او فلانی څومره هرڅوک بەد خپلواراؤ بەتناسب بیاشوراته خپل تفرلیږی نەدی کشمکش احتمال شته، اونەدی یوبل دتکولواو محکومولواحتمال. لدی نه هیڅ پیښەنه راپیدا کیږی ترتولوآسانه لارموږغوره کړی ذادجنگ او شخړواحتمال چیرتەدی ماته دی وښیی چی چیرتەبەجنگ راپیدا کیږی؟

ولی به راپیدا کیږی ؟ پەهرکمپ کی بەداووتنظیمونوهیئت وی دا به پەمنځەصندوقونوباندی نظارت کوی هرڅوک بەمځی یوی کوتی تەبه ننوزی کارت بەیی پەلاس کی وی اوبه یوصندوق کی بەئی اچوی بیرته بەراوزی اوکاربەئی خلاص وی بیابەهمدا اوەکسان پەخپلومنځونو کی کینی آراوی بەحسابوی اووائی بەچی لەفلانی کمپ نه دفلانی حزب دومره دی اودفلانی حزب دومره بیابه هرحزب دخپلو آراؤ پەتناسب نمایندگان شوراته معرفی کوی جنگ چیرته راپیدا کیږی ماتەدی وښیی؟ پەداخل کښی موهم همداسی ویلی چەآزادانتخابات بەنەکیږی جبهات معلوم دی مثلا دکابل پەچهاردهی کی څوجبهی

ئ‌ی دچاپی جبهات هلته شته کوم کوم قوماندان شته شوحئو مجاهدین
لری شومره وسله لری داتول معلوم دی مثلاً دپکتیا په سید کرم کی
کومی کومی جبهی دی یا همداسی بلمولسوالی او یا علاقداری داد
موجوده جبهاتو قوماندانان به په خپلو منځو کی کینی یا به له خپلو
منځونو نه یو کس التخابوی جنگ به چیرته کیری ما نه وښیی ولی
نه کیری؟ په اکثره ولسوالیو کښی اوس هم متحدانه جنگ روان دی
داوس دخوست په جنگ کی دټولو موجوده تنظیمونو چی هلته جبهی
لری تر یوی قوماندی لاندی دفیض محمد خان ترقوماندی لاندی دا
شومیاشتی کیری چی جنگ روان دی. ټول تنظیمونه دیوی قوماندی
لاندی، شورالری. فیصلی مشترکه ده.
داوس په کامه کی جنگ روان دی ټول تنظیمونه په همته دی تریوی
قوماندی لاندی جنگ کوی داوس قندهار کی جنګ دی واحده
قضائی کمیته لری او د جنگ لپاره واحده قوماندانی او شورا
لری په کن شمیر منطقو کی همداسی حالت دی داجنگ ولی راغئ
هسی داخلک حیلی بهانی جوړوی چی نه کیری زه یقین لرم دټولو
شخړو او مشکلاتو دحل یوازینی لاره همداده او که دامی نهوی نو زه
دی ورونوته وایم چی ماته وښیی چی هغه طریقه او لاره کومه ده
چه موږ یوه مقتدره او با اعتباره شورا جوړه کړو؟ هغه ماته وائی ورونو
بهواوری! هغه ماته وائی چی خبره دی دټولو احزابو دی مساویانه

غړی شوری ته راشی، نو مونږ ته وایم چه اول خو دا خبره غیرعادلانه ده ولی
مساوي با نه راشی دا مساویانه په کوم معیار او ملاک باندی تاسی ته عادلانه
ښکاری. که یو ضعیف دی او له بل سره زیات قوت دی دواړه دی ولی برابر
وی،؟ دا کوم عدالت وائی، دا کوم اسلام وائی؟ اول خو دا کار غیر
اسلامی دی غیرعادلانه دی. له دی نه علاوه ورونو دا اوس مونږ
همدغسی یو شورالرو مونږ دا خلق برابر ومنل د خدای په خاطر او د اتحاد
لپاره مونږ دا ومنل د ټولو سره مومساویانه شوراګانی جوړی کړی
یوه نه څو شوراګانی او تر ټولو ضعیف احزاب مونږ له ځانه
سره برابر قبول کړل دا تیر اتحاد خو ستاسی په یاد دی چه
ټول مهم پوستونه مونږ وروته ورښودل ریاست، مالی کمیټه، نظامی
کمیټه، مونږ ورته ویل تاسو ئی خوښ کړی دا مونږ نه ویل چه فلانی ضعیف دی،
کم دی کم دی او ولی فلانی زیات دی زیات دی او ولی خیر دی ټول د برابر وی
نبی مؤذن پیژنی هغه هم له مونږ سره برابر و مولوی منصور مولوی
صاحب محمد میر دا ټول برابر سره ناست ؤ احزاب هم نه لری یو هم
حزب نلری. کنه! خو مونږ له هغو نه هم اووه اووه اولس لس کسان ومنل د دی
لپاره چه شکر مو کاوه چی په دی به زمونږ مشکل حل شی، ماته و بنیه
هغی خبری زمونږ مشکل حل کړ؟ دا اوس اوس مونږ یو شورالرو دی،
اتحاد لپاره شاید تاسی خبر نوی د هر تنظیم اووه اووه کسان پکی برخه
لری خو دی شورا د دی دریو کلونو په دوران کښی یوه جلسه کړی او
اوس د شورا غړی خبر نه دی په هغوی د شورا غړی دی، له یاده مو

وتلې دي داشورا خو موږ لرونو که پدې زموږ مشکل حل کیږي نو بله شورا بیا ولې جوړو، تیاره شته. پدې باندې مشکل نه حل کیږي نه زموږ ملت مطمئن کیږي نه مجاهدین داده کیږي او نه دنیا مطمئنه کیږي دا یې لاره د حل نه ده داسې کار مو به باربار کړی بیا یې نه تکراروو دا فیصله هم زمونږ ته اوروم چې بیا به موږ دغسې د ملت دخوښې نه پرته مساویانه شوراګانې جوړې نه کړو دا شوراګانې ددې نه بعد نه کیږي که دا فیصله مني چه ترڅنګه اوکه نې نه مني یو څو روځې ورته صبر وکړې انشاالله مجبوره کیږي دې فیصلې ته به راکوزیږي دیری فیصلې نې یو وخت له موږ سره منلې خو او سرنې مني انشاالله دا خبر مهم بالاخره یو وخت له موږ سره مني زمونږ ته منتظریم او په دې باندې داده او مطمین یم (تکبیر) وروڼو زما دوهمه خبره دافغانستان دروان جهاد په هکله ده له جنګي لحاظ نه الحمدلله زموږ وضع تر بل هر وخت نه اوس بهتره ده دوس چه دروسانو تلفات اوس لوس اضافه شوي بل یو وخت کې هم نه وا وجنګ تر سابق نه تشدید شوی زیات شوی او اوس دروسانو تلفات په هر جنګ کې تر پخوا څو څو ځله زیات شوي سږکال خودې حد ته خبر رسیدلې چه هر مروځ دوه جهازونه نسکوریږي حد اوسط هر مروځ دوه جهازونه او ددې جهازونو قیمت کم نه کم پنځوس ملیونه داله کیږي یوازې دغوی د جهازونو مصرف پنځوس ملیونه دالره دې یوازې دجهازونو. او دغوی نور تلفات لکه دټانکونو، *موټرونو وسایلو ذخایرو او دمهماتو مصارف پر دې علاوه دې. زه یقین لرم

چه‌تور روسان ستري دی اوپه‌ی بالدی پوه‌یدل چه‌په افغانستان
کې پاته‌کیدل او ددی مقاومت تکول ممکن نه دی دروسانولوی
لوی معل شندی‌کیږی‌دااوس‌په څاځیو کښی جنگ روان‌دی‌پدی
جنگ کی‌پنځه‌څنده دروسانو فوځ برخه‌لري دادی تردریوهفتونه
هم‌زیات وخت ورباندی تیرشوچه جنگ هنوزهم روان‌دی تولـه د
څاځیو منطقه دمفوی په‌وبچاروټانکونو اوموتروباندی دکـه ده
هرفوځ‌دوه اودری طیاری مری اوزخمیان کابل ته‌وړی دجنگ‌له
شروع نه‌ترلن پوری اوګن‌شمیر روسی فوځیان پـدی جنگ‌کی په
قتل‌رسیدلی، ګن‌شمیر. په‌یومسنګرپالدی‌له‌څوش باران‌نه‌پورته‌مفوی
څلورځله‌حمله‌وکړه‌څلورځله‌پی‌حمله‌په‌شاوتمبیدله‌څنډمشوله‌څلورځله
مسلسل‌هفوی‌یوپه بل‌پسی بریدوکړاول‌بهٔنی ښه ترسختی بمباری
لاندی ونیول چه‌بس تولـه‌منطقه به‌اوروکرځیدله بیابه دتوپونـواو
ټاکتودزی پیل شوی دهغی نه‌بعد به‌مغوی پیاده قوتونه سوق
کړل ترڅو هغه مرچلی ونیسی خو په هرځل کی دهغوی حمله
په شاتمبیځل حتی‌روسانونه شوای‌توانیدلای چی‌هغوی ځپل‌مړی
انتقال کړی ګن‌شمیر کلکوف ئی‌مجاهدینوپه غنیمت ونیول‌دروسانو
دکومالدنوکانو لمړونه اوداالوس هم‌دهغوی‌دتانکونو داحالت‌دی
چه‌هغوئی پمسترکووینو چه‌کله راشی اویوه‌کوښه‌کی پټه‌شی چه‌هلته
مجاهدین ورباندی دزی اوبریدشروع کړی بیاسره خوارمشی کله
تانکوله پرایودی خوارمشي اومندی‌وهی ټانکونه‌اوموتری ځـای

پەځلې پرېږدي يوه موري او پناگاه ته ځان رسوي او سخت پريشانه
حالت دي ورەخبره نه دەچې څه غنيم د روسانو پەيوه جنگ کې برخه اخلي
يو غونډ ني د کوماندووي او تر يوې فرق نه زيات فوځ دي جنگ کښي
برخه واخلي خو هيڅ جنگي هدف تر لاسه نه کړی شي دري مياشتي
د يې جنگ دوام وکړی هر ځل د ۸ نه تر ۱۲ طيارو پوري راشي او په توله
منطقه کې بمونه واچوي هره ورځ څو څو ځله همدغسي بمباري کوي
۸، ۱۰، ۲۰ طياري يو ځل راشي چې داشه بمونه لري خالي ني کړي.
پرته د روسي، عجبه د چې دشمن ونه شي توانيدلی چې يوه لويښت
پرمختګ وکړي. د روسانو دا حالت دی زه يقين لرم چې انشاالله
ځانته بوبه ناکام او نامراده پس له ډېر ډير و تلفاتو په شا درومي
او له نورو سيمو نه هم. په کڼ شميرنورو ځايونو کې همداسي
جگړي روان دي، د جنگ حالت اوس تر بل هر کال بوتر دی. زەدە
خبره پەدی خاطر پەتکرار سره کوم چې د جهاد په نسبت څه تبليغات
روان دي او څه کسان داسي واي چې اوس ملت ستړي
شوي دي ستومانه دي او جهادي ترمابق نه ضعيف
شوي دي. دا خبري ټولي بې بنياده او دروغ دي، دا تبليغات
هغه کسان کوي چې اصلاً له جهاد نه خبر نه دي، تاسي
فقط لږ دي کمپونونه تر سرحده پوري ولاړ شي بيا به تاسي ته
حقيقت معلوم شي، تاسي وگوري چې پەدی خوست کې څه شوي،
دا مړکال او پروسږکال د حمل نه تر اوسه پوري تاسي وگوري چې

حوست کی څه شوی؟ اوس له حمل نه وروسته تامی وکوری چی په دی دری میاشتو کی هلته څه شوی دی. پدی ځانګوکی پدی دریو میاشتو کی څه شوی دی؟ په تواله پکتیاکی وګوری څه شوی دی، زه یقین لرم چی بل یوکال هم روسانو ته دومره تلفات ندی اوښتی لکه داسږکال چی په پکتیاکی ورته رسیدلی.

په ننګرهارکی چی دا تیرکال جنګ شوی. په تیرو دریو، څلوروکلوکی دومره جنګ ندی شوی، دلته دننګرهار زیات ښه یر ورونه شته. په سمت شمال کی هم الحمدلله اوس په شدت سره تقریباً په تولو ولایتونوکی جګړه روانه ده اواوس خبره دی حدته ورسیده چی حتی مجاهدین له سرحدنه هم اخوا تیرشول په «چاه آب» کی ئی د روسانو پر یوه سرحدی پوسته حمله وکړه، ۳۰ نفر ئی په قتل ورسول، څوکسان ئی له ځان سره ژوندی رااستل او دمغوی تواله وسله ئی هم غنیمت کړه او د هر حولوتکبیر. دوه ځله دامام صاحب داولسوالی مجاهدینو له سرحد نه هغه طرف تدروسانو پرمرکزونو حمله وکړه. په سمت شمال کی چی سږکال کوم جهادروان دی بل یوکال هم پدی پیمانه نه و. دجنګ حالات الحمدلله زیات اطمینان بخش دی. که څه هم زموږ ځینی مشکلات ترسابق نه اضافه دی پدی دریوکلونوکی دسمت شمال په اکثرو ولایتونوکی بارانونه ندی شوی زراعت وضعیت خراب دی. زیاتره خلک مهاجرشوی دی، دقحطی حالت دی دغلی قیمت ډیر

سوال ورته پیداشو. زه دلته حاضریم امیدواریم دورونو سوال ته ځواب ووایم. خوکومی خبری چی وروته دلته اوری داپه دیوه لوی امانت په حیث له ځان سره قوم ته انتقالوی.
زه به وروسته انشاء الله ددی وضاحت وکړم چی په کومه موضوع باندی چی زه په لومړی سرکی خبری کوم هغه زموږ په دی جهادکی ترټولو نورو سترو پیښونه ستراهمیت لری او زموږ دجهاد آینده وربوری تړلی‌ده. تاسوبه حتماً اطلاع لری‌چی‌داتحاد عالی شورا پس له هغه چی خپله فیصله ئی دروسانو دملی روغی جوړی په هکله اعلان کړه دهغی ستری جاسی په ترڅ کی په کومه کی چی تقریباً دری لکه مهاجرینو او مجاهدینو برخه اخیستی وه ملته موږ دقوم په وړاندی او دټولی دنیا په وړاندی د یوی‌خبری په هکله‌تعهد وکړ او هغه دا چی د روسی‌پوځونو تروتلو نه پس به په افغانستان کی د مجاهدینو موقت‌حکومت جوړیږی. بیابه داموقت حکومت په ملک کی عام انتخابات‌کوی دعامو اوآزادو انتخاباتوپه نتیجه‌کی به دملت په خوښه یومنتخب اسلامی حکومت جوړیږی. موږددی خبری په خپلو منځونوکی تعهد وکړقوم او دنیاته مو ددی خبری اعلان وکړ. ددی‌لپاره چی‌موږ د روسی پوځونوتروتلونه بعد د مجاهدینو د حکومت په هکله په خپلو منځونوکی توافق وکړوچی داحکومت به څنګه جوړیږی، ددی حکومت صلاحیت به څه وی، دحکومت په رأس

اوچت شوی، خو سره امیددی چې حالت نسبتاً بهتروی، بارانونه
شوی، زراعت ښه دی. لدې ولایتونو نه زیاتره موږ ته د ښه اطمینان
خبری راځي که وروسته وروسته ښه خاصه تبدیلی راشي.

زه ورونوته دااطمینان ورکوم چې دجنګ حالت تر پخوا زیات
ښه دي نن که روسان دا خبره کوی چه د خپلو پوځونو ایستل
غواړی، ددې عامل ستادجګړی اومقاومت فشاردی، که ستاجنګ
کمزوری وای بیابه دی له روسانو نه کله هم دا خبری نه وای
اوریدلی، داستادستواو قربانی زوردی، داستاد جهاد اومقاومت زور
دی چې روسان نن دی ته اړ ایستلی چې ښه دی داخبری وکړی
چې د مسئلی صلح آمیز حل غواړم اوپه فوری ډول له افغانستان
نه دخپلو پوځونو دایستلو په فکرکی یم اودی ته هم حاضریم چې
ملی مصالحه دی راشي، روغه جوړه دی وشي، مجاهدین دی په
حکومت کې برخه واخلی. زمادخبرو بله برخه همداده: په دی هکله هم
ځای ځای ښه تشویشونه وجود لری، تاسی حتماً اوریدلی چې وروسته
له هغه چې روسانو د«ملی روغې جوړې!» اعلان وکړ ترنن پوری
هغوی پر دی خبره زیات ترکیز کوی اوهغه زیاته تبلیغوی دکابل
رادیو هم هره ورځ د بحث ستره موضوع همداوی. داسی چې ګویا
روسان دی ته آماده دی چې مجاهدین دی هم په حکومت کې برخه واخلی
اویو مختلط ائتلافی حکومت دی جوړ شي. اولوم ری نن هم همدا خبره
کوله، ټولوته هماغه معلومه ده. چاچې وسله هم له ځان سره تبنتولی ده.

چې بېرته راغی ورته عفوه ده. له چا نه چې ځمکې اخستل شوي دي
چې بیرته راغي ځمکې به ور کول کیږي، له دې نه بعد اسلام د ملک
رسمي دین شو او د اساسي قانون په دوهمه ماده کې به هم لیکل کیږي.
نجیب هم خبرې په بسم الله .. شروع کوي او په من الله التوفیق
ئې ختموي په دېرشو الو خندا او شعارونه تکبیر.

سږکال کابینې او مرکزي کمیټې د غړو لمونځ هم وکړ
هغه یې په تیلویزیون کې هم وښوده او اوس وائي چې مونږ نه د
سوسیالیزم خبره کړې او نه د کمونیزم نه پلار پلار نه مسلمانان یو او بس
زمونږ قوم مسلمان دی او مونږ هم مسلمان یو زمونږ قوم هم دا
اسلام غواړي او مونږ هم اسلام غواړو اوس جوماتونه آبادوي
او په مجاهدینو باندې یې الزام دادي چه ګویا هغوي جوماتونه
ورانوي!! ادوي جنګ غواړي!! ددوي لومړی خبر هغه داوه وروسته
وروسته روسانو له دې نه هم تنازل وکړ او اوس داسي افواهات خپاره
شوي چې ګویا روسان چه تودي چې په یو کال کې ووځي، د ژنیو راتلونکو
خبرو اترو کې په هغه د اتفاق بعض الاوقات هم وړاندې کړي چې زه حاضر یم
په یو کال کې خپل پوځ وباسم او دې ته هم ګوري یا چې ترو شوي دي چې په یوې
موده کې به د کمونستانو د خلق او پرچم حکومت هم نه وي یوې
طرفه حکومت به وي او ددي ترڅنګ داسي افواهات هم خپاره شوي.
تاسو به هم اوریدلي وي چې کمونستانو څه کسان ددې زیات تبلیغ کوي
مخصوصاً بي بي سي ددې لپاره ټینګه په شوراو ځو سره لګیادي چې
مجاهدین خود کمونستانو حکومت له مني او روسان د مجاهدینو حکومت

نه‌منی طبعی ده‌چه روغه جوړه‌به په‌یو دریمګړی باندی راضی او دادریمګړی هم صرف بوکس دی بل نشته یو دریمګړی دی او هغه‌ظاهرشاه دی ظاهرشاه به‌بیرته‌راشی.

تاسی هرورځ په اخبارونوکی هم‌ګوری اوپه رادیوګانـو کی هم ددی دپاره تبلیغات کیږی چه‌اوس روسان دی ته‌آماده شوی چی ظاهر شاه ومنی زه وایم چی حاجی محمدګل‌ځمکنی‌منی ظاهر شاه به‌ولی نه منی زه یقین لرم چی هومره چه ظاهرشـاه هغوی ته مفید دی بل یو هم دومره مفید نه وو، نوره کی ، داوده ببرک، امین‌دی څه ورته وکړل دیاکی نی‌رسوا کړپه زرهاؤبوشیان بی‌په‌افغانستان‌کی‌په‌قتل‌ورسیدل‌په ملیونهاوملیونهاوخساری‌ئی‌ولیدی څه ګټه‌ئی وکړه‌په افغانستان‌کی ترټولو مفید هغوی ته‌ظاهرشاه‌و ولی به اوس هغوی ظاهرشاه نه‌منی زه‌باورلرم‌چه‌که روسان په‌دی پوه شی چه ظاهرشاه راتلی شی او قوم‌ئی منی نـو هغه به حتی د ځمکنی په ځای هم ظاهر شا راوستی‌وی خو هغه په‌دی پوهیږی چه‌که روسان ووځی دمجاهدینو‌نه‌پرته‌بل حکومت‌نشی جوړیدای اوهغه داخبره‌کړی هم‌ده هغه‌والی چه‌اول مالدی نه‌مطمین‌کړی (روسان لوروته په‌خبروانوکی وائی) چه‌زه ووځم اوزماتومنتان په قتل‌ولرسی اوزما دوتلودحالت په دوران‌کی یوداسی حالت راپیدا کړی‌چی‌جنګ‌متوقف‌شی‌دادومخبری اوس‌روسان‌کوی هغه‌والی چه اوس‌داهم‌منم چه‌سوقت‌بی‌طرفه‌حکومت‌دی‌وی خوماته ددی خبری اطمینان او داد راکړی چه زما دفوځونو د وتلو‌نه وروسته بـه

زما دوستان په امن وي. هغه وخت به لي ابر وننداله اوضاع او ز
حل خوارۍ او دهغوی په مزاج او طبیعت کې څه تبدیلي راغلې ده؟ که
پیدا شي؟ د استاد متوزوردی د استاد منکر وقوت دی د استاد زړن
په وجه ده او هغه اوس پدې پوهیدلی چه په تا حکومت نه شي کولای
پدې خاطر هغه اوس مجبور دی د وتللو خبري کوي او رو کړي چه
که ستا مقاومت نه وي او که تر سابق نه اوس کمزوری وي دا خبری
هغه تا ته وي وریځی که روسانو ته پر معمولي امداد واري پیدا شوی وی
چې یو کال به تیر شي او مقاومت به کمزوري شي دا خبری به ناهیح
که هم نوی اوریدلي هغه به دقیقه حسابداری کوري چي ورځ په ورځ
جنګ اضافه کیږي. او مقاومت تشدید کیږي هغه اوس پوهیدلی دی چي
دپاته کیدو مجال نه دی پاتې هغه ځکه دروغي جوړي او وتللو خبري
کوي. خو زه درونو ته د یوی خبري اطمینان ورکوم. هغه داچي
اوس په افغانستان کی د مجاهدینو نه پرته بل څوک حکومت نه شي
کولای هغه به ډیر احمق او ناپوه وي چي ددی ګمان وکړي
او تشویش ورسره پیدا شي چي په افغانستان کی د مجاهدینو پرته بل
څوک حکومت کولای شي. هغه به ډیر جاهل او ناپوه وي. روسانو
حکومت ونشو کولای، چي روسان وونه شو د مجاهدینو پرته به بل
څوک حکومت وکولای شي؟ په افغانستان کی ددی خبري په پروانه
ساتي. چي دا ټوله دنیا هم تبلیغات وکړي یوه خبره مسلمه ده او

هغه داچې د روسانودوتلونه بعدبه يوحکومت جوړيږي اوهغه به د مجاهدينو حکومت وي اود مجاهدينو په خوښه بهجوړيږي. چې مجاهدين کوم حکومت ونه غواړي، دخوشبعو لپاره هم لښی پاته کيداى.دخداى لپارداخوخه دملتهو خبره‌نده‌مه‌لکه‌اوس‌ساح کسان په‌افغانستان کې‌دی نهه(٩) کاله‌ئ په‌سنگرونوکی‌تیر کړی دی.اوپه یوه سنگرباندی‌یو. فرقه حمله‌کوی‌نشی‌توانیدلی‌هغه‌سنګرمات کړی‌اویو مجاهدله سنگر نه رااوچت کړی. زه‌نه‌پوهېږم‌چې دروسانو پوځولهم ووزی‌داحکومت به دچاپه مرسته حکومت‌کوی په کوم‌زور،په کوم قوت، چې روس دخپل دوه لکه‌پوځ سره‌په‌افغانستان باندی حکومت ونشی‌کولای. په(٩) کاله‌کی هغه په‌لس فیصده‌باندی حکومت جوړ نه‌کړای شو.(٩) کاله‌ئ‌زوروهلی اوس فیصده افغانستان باندی‌هم حکومت نه‌لری. دااوس‌په کندهارباندی‌هغوی‌تسلط نه‌لری داپلانه ورځ له‌بغلانه(١٣٠٠) دیارلس‌سوه سلح کسان‌مجاهدینو ته‌راغلل. دخلورو تانکونو سره، ددیارلس سوه میلمیلاح سره. تاسی به دا اوریدلی وی د بغلان په ولایت کی یې څنه مسلح کسان دولت درلودل.تول مجاهدینوته لاړل (دحاضرینوتکبیر) زماوروڼو لهدی خبری نه به‌هیڅ تشویش نه‌لری روسان چې ووزی دمجاهـدینو حکومت بهوی‌ستاسی دخوښی‌حکومت بهوی‌انشاءالله بل‌حکومت نشي راتلای.ماپاکستانی بعضومسئولینوته‌دا خبره هم‌وکړه‌هغوی غوښتل چې‌ددی ناحیې نه‌څه اطمینان ترلاسه‌کړی چې که روسان

وونجي نو د هغوي ملګري به په قتل ونه رسيږي. ما وويل
اساسي خبره داسي ده چي مسولينو اعلان کړي چي ټولو
هغو کسانو ته چي له اسلام او ملت سره خيانت کړي دي پر بيا ودي
توبه وکړي او قوم ته زاو ګرزي، سوږ د هغوي په نسبت
عمومي عفوه اعلان کړي. خو هرشوک چي د دي خبري تاسي ته
تضمين درکوي چي روسان وو زي. د هغوي دوستان به په افغانستان
ک روغ او رمټ پاته کيږي هغه دروغ وايي. هيڅوک
ددي تضمين نشي کولاي، هغه به ډير ناپوه وي چي ددي
خبري تضمين کوي او يا څوک به ددي خبره باندي مطمئن کيږي
چي روسان وو زي د دوي ملګري به ژوندي پاته کيږي. ما وويل که روسان
ددي خبري تضمين هواري نو دهغوي سره دي بوزي. (دحاضرينو لخوا
تکبير) د تضمين دا يوه لاره پاته ده که وربانـدي زيات ويريږي
نو دهغوي سره دي بوزي. لکه چي وينتام ک امريکايانو خپل دوستان
له ځان سره طياروکي بوتلل هدف چي له ځان سره يي بيولي وو روغ
اورمټ پاته شول. کوم چي پاتي شول د هغوي هيڅ تضمين و
نشو کولاي. ماته ووايه د چا په لاس چه يوولس لکه خلک
په شهادت رسيدلي وي اويو يکانه روغ ني ملک ته راواوړي وي او
په ټول ملک ک ني هوبل جوړ کړي وي. دچا ښځي زوي وژلي وي،
دچاپلار ورور وژلي وي او دچا ني په ناموس تيري کړي وي. او دچا ني
لوړتالک ته اچولي وي څوک به ددي تضمين وکړي چي هغه دي روغ

اورمت پاته شي. اوبيا دافغان غوندي قسوم کي. څنګه کيدای شي؟ چي هغه د خپل انتقام وانخلي.

ددي تضمين هيڅوک نشي کولای. روسان پوهيږي چي ائتلافي حکومت نشي کيدای. مختلط حکومت ملت ته مني الحمدلله موږ په صراحت سره دا خبره ردکړه اوس روسان ديوه بيطرف حکومت د جوړولو په فکر کي دي . يعني د روسانو د وتلو په موده کي به داسي يو حکومت جوړيږي چي مجاهدينو ته هم قابل قبول وي. البته روسان به ددي کوشش خامخا کوي چي دهغوي دطرفدارانو ونډه پدي حکومت کي څه لاس وي څنګه روسان داسي واني چي زه په هغه صورت کي ددوستانو دآينده اطمينان کيدلای شم چي هغوي په قدرت کي څه برخه ولري . که په حکومت کي برخه ونه لري دهغوي له ژوندنه موږ مطمئن کيدلای نشو. هغه د دي کوشش کوي اوس په دي پوه شوي چي داحکومت مجاهدينوته او ملت ته دمنلو وړنه دي. وروئو پدي هکله لهمونږ نه تپوس شوی. چي اوس وواياست دمجاهدينو دحل لاره کومه ده. يوخو دجنګ صورت دی. جنګ په هرصورت کي ادامه کوي.

خوپه هغه صورت کي چي روسان پهروغه جوړه دافغانستان نه وتل غواړي، دمجاهدينو طرح کومه ده؟ که روسان په يوه بيطرفه حکومت باندي هم قانع شي وواياست چي مجاهدين څه طرح لري؟

لەمونږنەددی خبری پوښتنه شوی اوموږ په دی باب بحث کړی.
پخپلو منځونوکی موږ په دی هکله څه خبری هم کړی دی.

حزب اسلامی چی کومه نقشه شوراته وړاندی کړی هغه
داسی ده: موږ وروڼوته وویل چی لومړی کارخودادی چی راځی
اول دروسی پوځونو دوتلونه بعدچی موږ کوم حکومت جوړوو
هغه سرله اوسه جوړ کړو،شورا انتخابشی.داشورادی رئیس دولت
وټاکی، حکومت دی جوړکړی. دنیاته هم اعلانو او قوم نه هم
اعلان کووچی زموږ دقوم پەخوښەچی کوم حکومت جوړشوی هغه
دادی! (دحاضرینو تکبیر) دروسی پوځونو دوتلونەوروسته بەدغه
حکومتواکی پەلاس کی اخلی، لومړی کاردادی. دوهمەخبردادەچی
موږددی خبری اعلان وکړوچی روسان دی پەدومره مودەکی لەافغانستان
نەووزی چی دخپل فوځ اودوسایلو دانتقال لپاره ورته ضرورت لری
یعنی عملی طور چی کومی مودی تەهغه ضرورت لری؛ ورته اړدی
چی خپل پوځونه او وسایل دی لەافغانستان نه وباسی هغەدی ومنی
چی زه پەدغه مودەکی خپل پوځ دافغانستان نەخارجوم. (تکبیر)

زماعرض دادی چی روسان دی پەدغسی مودەکی دافغانستان نه
وتلوتەآمادەشی، چی په کوم سیاسی بنیادباندی نەوی ټاکل شوی بلکه
لەلوژیستیکی لحاظه دخپل پوځ اووسایلودایستلو لپاره ورتەضرورت
لری. داموده موږ نه اعلانوو. پخپلو منځونوکی بەخبری وکړوچی

داسودەدی څومرەوی. یوه میاشت کەدوه میاشتی کەڅومره؟ خو اعلانوونه پەنەلەځانه مرەبەیی ساتو. اعلان بەیی هلته کووچی کله ضرورت پیداشی. اوس باید فقط ددنیا دقائع کولو لپاره موږ یوه معقولەطرحه وراندی کړو.چی دادی،موږ یوازی دجنګ خبرەنه کوو بلکی روغه جوړه غواړو، ترټولونه روغی جوړی اوسولی تەموږ محتاج یو. ځکەاور زموږ پەسربل دی. اوزموږ په ملک کی بل دی.

څوک به ترموږ زیات دسولی زوغی جوړی اوامن لپاره محتاج وی؟ موږ ترټولو ددی طرفدارینو چی جنګ دی ژرختم شی او زموږ ملک تەدی سوله اوامن راشی. روسی پوځونەدی پەدغسی یومودەکی ووزی، خوپه دی خاطر چی موږ دادەاومطمئن شوچی روسان وزی، خلک نه دوکه کوی، دپاته کیدلو اراده نلری، څوکارونه باید وکړی:

۱- داچی: خپل پوځونه دی چی‌په ټول افغانستان‌کی‌خواره دی‌څومرکزونوتەراغونډ کړی.یعنی‌لەښارونودی‌راغونډشی‌دهغوی پوستی دی راغونډی شی د شینډند هوائی میدان ته، بګرام‌ته، د دهدادی هوایی میدان ته، کیاه‌ګی تـه اودشت اودان مرکزونو تەدی راغونډشی. داخبره به موږ دادە اومطمئن کړی چی‌دادی روسان نور دوتلو پەحال‌کی دی. لەښارونو راغونډ شوی اولەدی ځایونو بەدهغوی وتل پیل‌کیږی. لومړی‌بەدا کار کوی.

۲: داچی داتولی امنیتی خوری پوستی ، د.لیشەاوپوځ‌دی

هم راغوندی‌شی‌خپلواصلی مرکزونوته.دابه دجنګ‌دپیاشروع‌کیدو احتمال‌ختم‌کړی.داخوری‌پوستی‌چی‌دپاړونوپه‌شاوخواکی‌دی،په‌لاړودی اوجنګی موقعیتونه‌یی‌لیولی‌لدینه دی‌داراکوری‌شی‌خپلواصلی‌مرکزونو ته‌دی‌غوندی‌شی. دابه‌موږ مطمئن کړی چی دادی روسان اوس د خپل مزدور حکومت دتحمیلولو اراده هم نلری. دجنګ ختمول غواړی. داپوستی خودجنګ لپاره دلته جوړی شوی‌دی. داچی راغوندی شی‌موږبه‌مطمئن‌شوچی دادی‌اوس‌دجنګ احتمال هم‌ختم شوی. لەدی نەبه هم مطمئن شوچی په نیمائی‌لارەکی روسان‌دختمی اودوکی اراده نلری. داده عملی کارهم شروع شویدی دجنګ د ختمولو لپاره داد‌وەکارەوشول.

۳: دریم کاردادی چی اوس( ۹ .)په‌سلوکی افغانستان‌آزاداو د مجاهدینو په لاس‌کی دی. مجاهدینو محلی حکومتونه هم‌جوړ کړی دی، انتظامات یی هم‌هلته‌کړی دی.لس فیصده افغانستان‌کی روسان مسلط دی. په‌دغه لس‌فیصده‌کی چی روسان وزی، امنیت‌یی باید افغانی پوځ ته‌وسپارلی شی، په‌پوځ‌کی باید څه تبدیلی‌راشی. دغسی‌تبدیلی چی‌د ټولوقطعاتوهغه.قوماندانان‌کوم‌چی‌دپوځ سوق اواداره‌یی په لاس‌کی دی، داصاحب منصبان بایدټول هغه کسان وی چی‌مجاهدینو ته‌قابل قبول‌وی، کمونستان‌نه‌وی. دامی‌کسان وی‌چی مجاهدینی‌ی ومنی.دا یو!

دوهم داچی ټول همه‌صاحب‌منصبان چی دافغانی پوځ‌نەوتلی،

کې په ځوک واقع‌وي، ددولت رئیس به ځوک‌وي، دهغه دانتخاب طریقه به کومه وي. ددې لپاره چې داخبرې مونږ تثبیت کړې وي اوموږیو باصلاحیته هیئت وټاکه، دې هیئت ته کارو سپارلی شو، چې‌ددې موقت حکومت د جوړیدو طریقه په ګوته کړي‌او یادهغه صلاحیتونه اودهغه دکارموده وټاکي.

دې‌هیئت خپل کار تکمیل کړ اوخپله فیصله ئې هم داتحاد عالي‌شوراته وسپارله. داتحاد عالي‌شورې په دې باندې خپل بحث پیل کړ. ترمتعددو جلسو وروسته چې مختلفې نظریې وړاندې شوې په پای‌کې ددې فیصله وشوه‌چې دادمجاهدینوموقت‌حکومت به په دې ترتیب جوړیږي: لومړی به یوه منتخبه شوراجوړیږي چې‌په دې‌کې به مهاجرین اوپه داخل‌کې‌مجاهدین‌او دآزا دومنطقو خلک‌برخه اخلي. په مهاجرینوکې به عام انتخابات کیږي. دټولو مهاجرینوچې په دنیاکې چیرته خواره دي مخصوصا په پاکستان‌اوایران‌کې، له دوې نه به پوښتنه کیږي دمهاجرینو‌له به ۲ ه کسان، دې‌منتخبې شوراته انتخابیږي. خوپه داخل کې به د آزادومنطقونه دهرې‌ولسوالي اوعلاقه داري په سطحه لومړی دموجوده جبهاتوله قوماندانانونه محلي شورا جوړیږي‌یعنې په هره ولسوالي اوعلاقه‌داري‌کې‌چې دجبهاتو کوم قوماندانان دي له دغوقوماندانانو نه به لومړی دهغه ولسوالي او علاقه‌داري یوه شوراجوړیږي.

له‌قوم سره‌یوځای شوی،دابايد پیرته په‌پوځ‌کی ځای په‌ځای شي، خوپه‌خپلو هغوپوستونو باندی چی دثورد«انقلاب» څخه مخکی‌یی درلودل.دثورتر«کودتا»مخکی که‌څوک دیوه‌کنډک قوماندان‌و،دی به‌بیرته دهغه کنډک قوماندان‌وی، که‌دفرق قوماندان وهغی‌فرقی ته‌دی‌لاړشی. دابه‌موږمطمئن کړی‌چی اوس‌داپوځ دغه‌پوځ نه‌دی‌چی کمونستانو جوړکړی. دابدیلی چی راشی،ددی‌لس فیصده‌حکوم افغانستان امنیت دی‌دوی ته‌وسپارل‌شی.

٤:څلورم‌کاربايد داوشی‌چی‌په‌دی‌موده‌کی‌دی‌یو بل‌دهغه‌سی‌حکومت ددی موجوده حکومت په‌عوض راشی چی‌رئیس ددولت، کابینه او دمهموپوستونومامورین ټول‌مجاهدین‌وته قابل دقبول‌وی.

موږویلی‌دی‌چی‌ترڅوکمونیست‌رژیم‌وی‌اودروس پوځونه‌وی موږجنګ نشوختمولای. څکه دروسی پوځونو دراتلونه مخکی‌مود کمونیست رژیم په‌خلاف وسله اوچته کړی. داسی نشی‌کیدلای چی‌کمونیست رژیم دی هم پاته وی اوموږدی‌جنګ متوقف‌کړو. څلورم‌کاربه داوی چی ددی موجوده حکومت په عوض بل‌مؤقت بیطرف حکومت راشی.ددی حکومت به دوه خصوصیات وی: یوبه داموقت وي، ددی ټول‌کاربه داوی چی دروسی پوځونوپه وتلو باندی نظارت وکړی. بل‌کاربه‌یی دغه وي چی په‌دی موده کی به‌ددی ښارونو امنیت ساتی. دوهم خصوصیت به‌یی داوی چی

دا حکومت به بیطرفه‌وی. یعنی څه؟ مجاهدین ته به‌هم قابل قبول‌وی.

حومسوږ ددی بیطرفه خبره په‌دی خاطر کووچی اصلاً دروسانو دپوځونوپه موجودیت کی‌خو دمجاهدینو حکومت جوړیدلای نشی. دمجاهدینو حکومت دامی جوړیږی چی روسی پوځـونـه، تول ووزی، دهغه نه‌بعد به‌دمجاهدینو حکومت‌راشی. خوپه دغه موده کی چی دروسی پوځونو وتل شروع کیږی ترڅوچی په پوره معینه موده کی تکمیل کیږی، په دی موده کی به کوم حکومت وی؟ بایه دا موجوده حکومت وی، چی دا حکومت موږ نه منـو ددی په خلاف موږ اوس جنګ نه‌متوقف کوو،خامخاجنګ کوو. په هغه صورت‌کی‌چی ددی حکومت په عوض بل حکومت راشی، کیدای شی چی موږ دامی یو حالت اختیار کړوچی‌جنګ‌محدوداً خاموش کړو.

موږ وروښوته ودل چی‌په دی کی دوه خطره شته: یوخطر دادی چی مبادا دروسانو قصددانه وی چی‌یوواردی‌جنګ‌خاموش شی، چی بیایې دوهم خل څوک شروع کولای نشی. چنی یو وار خلک وسله په مځکه کیږدی، لەسنګرونواوچت‌شی،مهاجرهم‌بیرته خپل ملک ته ستانه شی. بیادهغوی بیرته رااوچتول اوجنګ دی مرحلی ته رسول داګرانه خبره ده.مبادا دروسانو داخدعه اومکر په خپل کی نه‌وی.

بل‌خطر دادی چی دا مؤقت بیطرف حکومت چی‌جوړیږی،

داسی ونه شی چی روسان ووزی اودا حکومت بیاپاته شی.
څه احزاب هم ولاړشی دهغو ملګری شی اوپه دی ترتیب خلک هم دا حکومت ومنی اویو مشکل راپیدانشی. دادوهم خطردی.

ددی دواړو خطرونو مخنیوی په دی ترتیب کیدلای شی، چی اول داخپری پوستی چی غونډیری داهم ډیره لویه خبره ده، بیاچی دشمن ددوهم لپاره چی ددی پوستو ځای ته ځان رسوی «نوبه یی ووزی» ، آسانه خبره خونه ده، کنه! یوه پوسته چی جوړوی د هغوی نفس ورباندی خیژی. چی هغوی بیرته خپل پوځونه دی جنګی موقعیتونوته را او چتوی او دا پوستی بیرته جوړوی، کومی پوستی چی باید غونډی شی ځکه موږ دا شرط ورانددی کړی ، دا کار په ډیر ګران قیمت ورته تمامیږی.

دوهم دادی چی موږ خپل قوم ته نه وایوچی جنګ ختم شوو سلمه په ځکه کیږ دی ځی په ښارونو کی آرام او دسولی اوامن ژوندو کړی. نه! موږ وایو دانتظار په حالت کی په سنګرونوکی پاته شی. په خپلو مورچلو کی پاته شی دوه لی سره دی اودی ته منتظر او سیږه چی آیاروسان خپل پوځونه له افغانستان نه خارجوی اوکه نه ؟

که یې خپل پوځونه خارج کړمنبه ترښه، مسئله حل ده . که نه و، موږ په سنګرونوکی یو، څه موله لاسه له ددی ورکړی، ددی خطر مخنیوی به موهم کړی .

ددوهم خطر مخنیوی په دی ترتیب کیدلای شی،چی مونږ
خپل حکومت اوس اوس جوړ کړو. دنیا ته‌ یې هم اعلان کړو،
قوم ته یې هم اعلان کړوچه دمات په خوبنه باندی چی کوم
حکومت جوړشوی هغه‌د غه دی. له دی حکومت نه‌پرته موږ په
بل حکومت نه راضی کیږو. دابیطرفه حکومت چی دضعیفو
کسانو وی خامخا چی روسانو وزی دا به سقوط کوی‌او دمجاهدینو
حکومت به جوړ یږی.

په‌دی کی زموږ څه ورونو داویل چی کیدای‌شی‌دا حکومت
دبعضو جنرالانووی. موږ ویل چی که جنرالانو ته‌حکومت‌وسپارو
بیا به‌دسابق‌په‌شان‌مشکلات راپیدا کړی. څکه چی که هغه ته‌پوخ
هم‌جوړشی اوهغه دافکر هم کوی چی جنرال دی حکومت کولی
شی، کیدای شی چی‌دا دقوم درأی‌خلاف ودربږی اوله روسانو
بیاذا مطالبه وکړی چی پوځ راولیږی اویو بل دردسر ورڅخه
پیداشی. که څه هم‌اوس ددی‌خبری‌وخت‌ندی‌رارسیدلی چه موږ
دبیطرف‌حکومت لپاره‌داشخاصو نوم‌واخلو، څکه‌په‌افرادوهلته‌بحث
کیدای‌شی چه‌توله طرحه‌ومنلی‌شی.خودومره ویلی‌شو‌چه‌دجنرالانو
په‌عوض‌دی‌متقاعد قاضیان راوراندی‌کړو. کن شمیردغسی قاضیان
شته چی فقط دهمدی‌موقتی‌مودی‌لپاره‌دی‌هغوی‌حکومت‌جوړ کړی
دهغوی ترنظارت لاندی دی روسی پوځونه ووزی ، له هغه
نه بعد به دمجاهدینو حکومت جوړیږی.

بعضي ورونو داهم وويل چي کيداى شي دامن بين المللي پوځ راوغواړو. مونږ ووېل چي دا خبره ډيره خطرناکه ده. داخبره په نه کوځکه روسان هم دامن دپوځ په نامه راغلي روسان اوس نه وايي چي مونږ دجنګ پوځ يو،وايي دامن پوځ يو !

او دخپل دوست ملک په غوښتنه باندي محدوددامن قطعات مونږ افغانستان ته ليږلي، محدود دامن قطعات (!) افغانستان ته ددوست حکومت په بلنه تللي دي. تر هغه وخته به پاتېږي چي داحکومت وغواړي !

حال داچي داحکومت هم دوى په ټانکونوکي راوړى اوکه جنګ کوى دادامن پوځ يې کوى. همدغه دامن محدود قطعات! يې کوى. که داني «دامن محدود قطعات» ووزي ، جنګ ختمېږي.

هر بيګانه پوځ چي کوم ملک ته دامن دپوځ په نامه تللي دهغه نه دجنګ پوځ جوړ شوى. هغه بيا خپله اراده په قوم باندي تحميل کړى ده. ځکه اوپه چاباندي اعتماد کولي شووچي هغه دي دخداى اواسلام لپاره مونږ ته پوځ راوليږي. هر څوک چي خپل پوځ را ليږي هغه به خپله اراده زمونږپه ملت تحميلوي، داسي حکومت به جوړوي چي دوى يې غواړي.دسولي پوځ ته ضرورت څه دى ؟ لس فيصده محکوم افغانستان پاته دى نوى فيصده آزاد ده، په دي لس فيصده کي دي دا مؤقت حکومت

چارې په لاس کې واخلي دامنیت لپاره دی هم په دی پوځ کې تیلچلی راشي، مشکل حل دی. بل پوځ تـه څـه ضرورت دی؟ موږ ورونوته دا خبره هم وکړه چې: که موږ بین‌المللي دسولې او دامن پوځ وغواړو، نوروسان به دنیا ته وایي چې‌دادی گوري مجاهدین پخپله پدی اعتراف کوي چې داته څه بیگانه پوځ تـه ضرورت‌شته.دائهای مادک کړي‌داخالیگاه مادکه کړي. مجاهدین خپله وایي که زه ووزم بل بیگانه پوځ به راشي.دادروسانولپاره پودلیل گرزي. موږبه دسولې دپوځ خبره نه کوو، موږبه داخبره کووچې اصلاً جنگ دروسانو اوافغانانو ترمنځ روان دی، چـې روسان ووزي داخلي مسئله پخپله حل ده. داخل کې خو مسئله نشته. جنگ‌خو داخل دقوم کې‌روان نه دی چې بهرنی‌پوځ راشي اوزموږ ترمنځ داجنگ ختم کړي. جنگ خـوز موږ دتـول قوم دروس په خلاف روان دی چې روسان‌ووزي،جنگ‌ختمیږي‌دسولې پوځ تهضرورت نشته.

ورونـو ! زموږ طرحه او پیشنهاد و شوری تـه همداوو. خومتاً سفانه‌چې تراوسه پوري داخبره نه‌ده منل شوي. مونږ هغو دوستانو ته ووېل چې که له تاسي سرمتردی‌نه مجقوله څه لازمي موږ تهي وبنیاست چې موږ وربالندی بحث وکړو، له تاسي سره‌یې موږومنو.خوداخبره‌چې موږیې‌دنیاته کووچې«نه»زموږجنگ‌اوجنگ، لهجنگ‌له‌پرته بله خبره نه منو!،دنیا موږ ملامتوي،دادروسالوبه

کته تمامیږی. روسان نوری دنیاته وایي چی زه خودادی سوله غوارم، روغه جوړه غوارم ، له افغانستانه وتل غوارم، خو مجاهدین دی چی روغه نه غواړی اوپه جنګ باندی اصرار کوی .

ماهغوی‌ته وویل‌چی زموږ اوتاسی دجنګ مخه‌چانیولی ؟
جنګ خو هسی‌هم روان دی چی ترڅو روسان یی جنګ روان دی، خودنیادقانع کولو لپاره باید موږ یوه معقوله‌طرحه‌وړاندی کړو، چی دنیا وربا ندی قانع کړو دنیا په دی متیقنه کړوچی روسان سوله نه غواړی دادی جنګ کوی که یی‌سوله‌غوښتلای داخبره‌به‌یی منلی وای. موږ دسولی او دمسئلی دحل‌پشنهادکړی. روسان جنګ غواړی دجنګ باعث دوی دی. په دی خاطردده پیشنهاد مخالفت کوی. تراوسه پوری په دی باندی فیصله نده شوی. زموږ له دی خبری څخه یومقصد داهم‌دی، موږ چی‌دده بیطرفه‌مؤقت حکومت خبره‌کوو،پدی‌خاطر چی خلکوته‌داهم‌وښیو چی‌دابیطرفه اوثالث باالخیرچی‌تاسی‌روسان‌اوغربیان‌ئی یادوی، یوازی‌څخه‌یوثالث باالخیرنشی کیدلای نورهم دبردی. صحیح ده په دریم باندی که جوړه روغه راتلای‌شی دادریم بسوروتاکو. داز موږ دقوم حق دی داستاسوحق نه دی. پیبی‌سی وا یی‌چی دریمګړی هماغه یو کس دی اوبل دریم ګړی نشته، خوچی موږ پخپله دا خبره وکړو چی صحیح ده . دریم دی‌وی، بیطرفه دی

وی، مؤقت دی وی په دغوخصوصیاتو سره‌دی‌وی. زموږ په قوم کی داسی دریمګړی ډیر زیات دی. . . (دتکبیرناره)

زموږونو ته‌ددی خبری اطمینان ورکوم فقط یو حکومت په افغانستان کی جوړیدای شی : داسلام حکومت، دمجاهدینو حکومت. له‌دی نه پرته بل حکومت نشی جوړیدای.

روښانه دی پدی وپوهیږی او دنیادی هم پدی و پوهیږی زموږ قوم د اسلامی حکومت نه رالاندی به‌بل‌شی نه راضی کیږی اولدی نه پرته بل څه کیدلی نشی زموږ قوم داسلام په خاطر یوولس لکه شهیدان ورکړی څنګه کیدای شی چه له اسلام نه پرته دی په بل حکومت راضی شی، زه‌تاسو ته ددی خبری کاملا اطمینان درکوم. چیرته هم‌داتشویش درسره پیداشوی چی شاید بیرته هغه ظاهرشاه راشی اوزوږلیوه بیاپه قوم باندی مسلط شی،کنه،څه خلک همداسی فکر کوی تبلیغات همداسی کیږی چه د قوم اکثریت پی منی. تاسو دقوم مشران یاستی د خپلو کیمپونوحالت بهتردرته معلوم‌دی تاسو اوخدای وواپاستی‌چه‌پدی قوم کی به څو فیصده ظاهرشاه غواړی. موږ پوښتنه کړی ډیر کیمپونه مو دقیق سروی کړی‌دسروی‌په ترڅ‌کی موږ چه کوم‌سوالونه له خلکونه کړی یوسوال‌داوو‌آیا دظاهرشاه پهشان باندی‌حکمرانان محاکمه شی؟ ورته عفوه وشی؟ او که بیرته راشی؟ ددی پوښتنه موکړی. په دی خاطر موداکارکړی چی موږ داخبره په دقیقه

معلومــه کــړو چې په مهاجــرینو کې . په څــو قصده خلک داسې کړی چې په ظاهر شـاه بـاندی راضي کړی. پـه سلوک نوی‌وویلی چه محاکمه دی شی او په سلوک اسو دوه خبری یاری‌یوه ویلی چه‌ورته عفوه دی وشی اوبل قسمت ویلی دی چه ده‌که روسـان پدی خبره بانـدی وزی‌خوراځی‌دی موقتآبه‌ئی قبول کــړو روســان دی وزی بیاد ظاهر شاه مسئله آسانه ده، خوچه اروسان یوځلی‌ووزی.یعنی‌پدی‌لی‌فیصده پاتی کسانوکی دوه‌دلی‌دی یوه‌دغه ومچه یوواری دی‌روسان ووزی بیابه اه هغه سـره جـوړ پژو خیردی چـه را شـی، اویـوی دلی وویـل چی خیر دی‌ورته عفـوه دی وشی هـمـداسی پی پـریـږدی خیـر دی دادوه خـبـری شـوی نــوی فیصـده ویلی چی محـاکمـه دی شـی دغـه دری تنظیمونـه چه اعـلان‌یې وکـړچه کیدای شی ظاهر شاه په آینده کی څه رول ولری. څنگه چه‌دهغوی‌د مشرانو داخبری په زادیو پی‌بی‌سی کی اعلان‌شوی دهغوی‌قوماندانان په کوته‌کی‌راغونډشول خلک داسی وایی چـی دظاهر شاه نفوذ ترټولو زیـات شمیر پـه کندهـارکی دی څکـه هلته پهزی اوسدوزي شته اوکیدلی شی داخلک ظاهرشاه وغواړی خودغه‌پهزیان، سدوزیان‌اوددورانی قوم خلک هلته ایمان لری دخدای (ج) لپاره جنگیـدلی دی هغـوی داقـربانی داسلام په خاطر ورکړیده دهغوی قوماندانان راغونـډ شول په کویټه کی پی لویه جلسه وه پدی جاسه کی یـی فیصلـه

وکړه چې دوهمه ماده یې داوه تاسو به په اخبارونو کې لوستلی وي چې هغه څوک کوم چې پدې موده کې یې په جهادکې برخه نه درلوده هغه به په راتلونکي آینده حکومت کې برخه نه لري خو شیطاني پریسې داپه بل رنګ کې خوره کړه وي ویل چې داوو تنظیمونو خلک راغونډ شوي ول غوښتل یې چه دظاهر شاه په خلاف څه فیصله وکړي خودپیردري زره کسان راغلل اودا خلک یې پرې نه ښودل چې دامې فیصله وکړي. باوروکړي چې ظاهرشاه صرف دانګلستان انټلجنټ سرویس غواړي انټلجنټ سرویس دانګلستان لګیادی اوداټول تبلیغات هغه کوي داهنګامې چه خپروي دا بي بي سي کې چه تبلیغات کیږي دا ټول دهغوی کاردی. هغوی پوهیږي چه بل څوک دغسې چه افغانستان ته دې راشي او د استعمارګرانو ګټې دې خوندي شي اوپه افغانستان کې دې داسلامي حکومت دجوړیدو مخنیوی وکړي د ظاهر نه پرته نشته هغه پوهیږي چې که روسان ووزي اودمجاهدینو حکومت راشي نوهغه به دوي ته څومره دردسروي هغوی کلهم اسلامي حکومت نشي منلی هغوی دمجاهدینو په حکومت نشي راضي کیدلی هغه غواړي چې لکه چې دظاهر شاه پلاریې رواستي ؤدغسې دې هم راولي. دظاهر شاه پلاریې له فرانسې نه راولیږ وملت دانګریزانو په خلاف وسله اوچته کړه خوانګریزانو نادر له فرانسې نه له وملي سرمراولیږه

بیابه ددغی شورانه یوکس دانتخاباتو په نتیجه‌کی مرکزی شوراته راغی په دی ترتیب بـه تقریباً (٣١٢) کسان انتخاب کیږی اودامنتخبه شورابه جوړوی.

دی منتخبی‌شوراته به واک ورکول کیږی چی هغه دآینده حکومت رئیس هم وټاکی اودابه د ټول قوم نماینده شوراوی. دآینده په هکله به ددوی فیصله ټول تنظیمونه منی په دی فیصله باندی دټولو تنظیمونومشرانو امضاء وکړه. زه په‌وضاحت سره ورونوته وایم چی دا طرحه زمونږ وه داموږ ورونوته‌لیکلی ورکړی ده چی دمسئلی حل فقط په دی صورت سره کیدلی شی. خدای دی دنورو تنظیمونومشرانو ته‌هم اجرورکړی چی دافیصله ئی له موږ سره ومنله. دفیصلی په‌پای‌کی ټولو امضا وکړه بالاخره دادنیاته اعلان شوه چی دټولو مجاهدینو مشرانو په خپلو منځونوکی توافق وکړچی لومړی بـه یوه منتخبـه شورا جوړوی. ټولو دوستانو ددی‌فیصلی سخت‌تقدیر وکړ. دجهاد ټول دوستان په دی‌باندی‌ډیر خوشحاله شوی. باور وکړی چی دپاکستان د حکومت ټولو مسئولینو رئیس جمهور، صدر اعظم زموږ ددی ہریکړی ہی حده تائیدکړی. اوویل‌ئی چی که‌تاسی پدی وتوانیدی شی چی داسی یوه شوراجوړه‌کړی اوداسی انتخابات ترسره‌کړی ستاسی دجهادیولوی‌مشکل حل شوی، له موږ نه چی څه‌کیدای شی هغه به نه سپموو. خولکه چی تاسی هم خبریاست چی

دحبیب الله خادم دبن رسول الله په خلاف بی هغه مساح کړوبه ملت بساندی بی تحمل کسړ هغه خوندئی لاپه خولی پاتی دی لکه چی پلاربی زموږ په ملت باندی تحمیل کړی وُغواړی چه زوی یې هم راولی خو اوس انشاالله ددی وخت تیرشوی اوس بسه پسه افغانستسان کی د مجاهدینو حکومت جوړیږی دمجاهدینو دحکومت نه پرته بل حکومت نه شی جوړیدای ، لدی ناحیی نه به تشویش نکوی داهسی ددبمن تبلیغات دی زه ورونوتاسوته یومثال وایم دااوس په ځاځیوکی چی کوم جنګ روان دی چی دیوی فرقی نه زیات فوځ پدی که مصروف دی دری هفتی جنګ دوام وکړ خو تاسی به له بی بی سی نه څه خاصه تبصره وانه وری ددی لوی جنګ په هکله، لوی ستر جنګ خود دی ستر جنګ په هکله به تاسو ددی رادیو گانو نه څه خاصه مهمه تبصره وانه وری وری وری پیښی دنورو ملکونو گوری چی په ... څومره مدوشد سره یې یادوی یو نفر چیرته په قتل ورسیږی پرمې ویتی شی، بندی شی چیرته مظاهره وروزی دپولیسو اودخلکو ترمنځ چیرته لاس واچولی شی په څومره مداوشد سره یې یادوی ولی دلته یوه فرقه پوځ دسلها ؤ توپونو ټانکونو سره په جنګ کی لګیادی په یوه لویه ولسوالی کی اوربل دی تره ...نه زیات مجاهدین شهیدان شویدی، اتیاؤنه زیات مجاهدین زخمیان شویدی اتیا زخمیان ، ٥٥ شهیدان اود روسانو تلفات چه خدای (ج) تـه

معلوم دی که هیڅ نه وی شپیته اویا ټانکونه لمنځه تللی دی شپېته او یا ټانکونه او زرهپوش موټری چی په یو جنګ کی لهمنځه تللی وی دومره نفر دی شهیدان شوی وی په سلها ؤ کسان روسی کماندودی پهقتل رسیدلی وی. مجاهدین دومره‌شمیر شهیدان شوی‌وی‌خوتاسو به څهخاصه تبصره وانه‌وری وجه‌یی‌داده چه دهغو تول کوښښ‌دادی چی‌د مجاهدینو‌په‌نفع‌دی‌داسی خاص‌تبلیغات‌ونشی چی دهغوی قوت ونښی اودهغوی جذبه اوقربانی دنیاته ثابته‌شی دا مسایل هغوی ته غواړی چی تبلیغ شی ، مخصوصاً د هغو احزابو په خلاف چه هغه ته دوی بنیاد ګراوای، افراطی وائی متعصب مذهبی وائی. په دوم جنګ کی چه دغسی احراب برخه لری دهغه پهنسبت باید کاملا ساکت اوخاموش واوسی یوه خبره هم باید ونکړی خود چا چه غواړی وده ورکړی، شهرت ورکړی نوم‌ئی مشهور کړی دهر چاخولی ته دی نوم واچوی او دتولوپه ژبوباندی دی دهغه نوم تکرارشی، ګوری چه وقتاً فوقتاً که جنګ وی که‌نه‌وی دهغه‌نوم باید واخلی اودهغه په نفع باید تبلیغات وکړی او د هغه نوم ژوندی وساتی دا سیاست ئی د ابتدانه تراوسه‌پوری تعقیب کړی، دا فقط دانګلستان دانټلجنټ سرویس‌برنامه‌دمچی‌غواړی‌دروسی‌فوځونو دوتلونه‌بعددی په افغانستان کی دمجاهدینو حکومت جوړنشی، خوانشاالله که خدای (ج) کول په افغانستان کی به دمجاهدینو حکومت‌جوړیږی

دښمنانو دعدم غوښتنې على الرغم به افغانستان کې دمجاهدينو پلاس اسلامي حکومت جوړيږي او راځي مونږ اوتاسې پدې جومات کې لەخداى (ج) سره خپل داعهد تجديد کړوچې ترڅو مونږ په آزاد، مستقل افغانستان کې دمجاهدينو پلاس سوچه اسلامي حکومت نوى جوړ کړي خپله وسله بەپه ځمکه نږدواوله سنګر ونوبه نەاوچتيږو. (دحاضرينو تکبير) زمونږ له خداى سره داتعهد دى (تکبير).

مونږ به انشاالله دخپلو شهداوُويني له خرڅوو اوخپلې دا تولې قربانى بەنه حبط کووداچې هرټبرکې اوس شهيد، کونډې يتيمان او زخميان دى، شايد ډير کم دغسې ټبر په افغانستان کې پاته وى چەهغه دى صدمه نوى ليدلى هغه تەدى يتيمان نه وى پاته، هغه تەدى کونډې نەوى پاتې، دهغه دى کورنه وى وران شوى شايد دغسې ټبرډيرکم وى، څنګه کيداى شي چې زمونږ ملت دى پس ددى ټولوقربانيونه پرته له اسلام نه پەبل شي راضي شي انشاالله اوس مونږ دمنزل په اخرى پړاوکې يوپەورستي پړاوکې اخيرى منزل ته د رسيدلو په درشل کې يو، معمولى نور صبرته ضرورت دى اوبس. که لږنور موصبرو کړ لکه چه لوط عليه السلام تەويل شوىوُ (اليس الصبح بقريب) آياسباون نږدې ندى ؟ «ان موعد هم الصبح اليس الصبح بقريب؟» د هغوى دعذاب نيتەسباون دى آياسباون نږدې ندى؟ باور وکړى چې زه دغسې ګمان کوم

چې نن‌نن مونږ ته‌دغه آیت‌متوجه دی «ان موعدهم الصبح الیس
الصبح بقریب» مباون ډیر نژدی دی انشاالله زمونږ د جهاد
دکامیابۍ ورځې ډیرې نژدې‌دی له‌مااوتانه معمولی صبر غواړی
خدای (ج) دوکړی چه‌زه‌اوته ددې منزل په اخیری پړاؤکښتړی
نه شواوداسې نه‌چې داتوله قربانی موچې‌ددې اوږده منزل په
دوران کې ورکړې ده داضایع نشي، داخوشې لاړشي داسې به‌نه
کیږي انشاالله، ددې اجتماع تعهد همداسې دی،دااجتماع چه‌دلته
جوړه ده د ټول‌قوم نمایندګي کوي دادلکهاوکسانو نمایندګي کوي
داهر یودیولوی قوم نمایندګي کوي انشاالله ددغو تعهددروغو
تعهد نه دی دخدای په جومات کې پداسې حال کې چه قبلې ته‌ئ
مخه ده اوله اودس سره‌ئ تعهد کړی دا انشاالله دمیړنیو تعهد
دی دمسلمانانواوددپاایمانه‌خلکو تعهددی‌مونږ دری سوه کسان ؤ
چې دغه مسلح جهاد موشروع کړ، اوس‌خو الحمدلله یوازې
دحزب اسلامی که هیڅ نه‌وی پولک شپیته پولک اویازره مسلح
مجاهدین‌دی کم‌نه‌کم،موږدرې سوه‌ؤاوا کثروسرمسر پوښ‌توپکو،
کلاشنکوف خوموقطعاًنه درلود یوراکټ موهم‌نه درلوده زماهغه
ورځې‌په یاددی چې زمونږ صاحب منصبانو دامین پروخت کې
دیوعسکري اقدام اراده کړی وه مونږ ته‌ئ احوال‌ولیږه چې‌صرف
که اتیا میله‌یوراکټ له‌بهرنه تهیه کړای شي بس. هدی خاطر
چې هغه دمجاهدینو کروهونه چې مونږله‌بهرنه‌مسلح کوواوهغوی

داکار شروع کوی دهغوی سره یویومیل راکټ واوسي بس بل شي ته ضرورت نلرو. ماددغو دوستو ملکو نو دیوچاسره تماس ونیولو ورته ومي ویل چه بس دوس محدودشي ته ضرورت لروبس. خوچاددی جرآت هم ونشو کولای چي مونږ سره اتیا میله راکټ کومک وکړی او هغه ورځي مي هم نه هیریږی چي زمونږ په تولو جبهاتو کي یوراکټ هم نه ؤ په ټانکو باندی بهئ په تمانچو اوپه سر پوشو دزی کولی دمین چل هم نه ورته. باروت ورسره نه ؤ.

دنورستان دخلکو قربانی می په یاد ده چي فرش، ظرف اودخپلو ښځو گاني بهئ خرڅولی اوکارتوس ئي ور باندی اخیستل. چي په هغه سودمکی دښمن ونشو توانیدلی (په هغه حالت کی) چه دا جهاد وتکوی اوس نو انشاالله ددی امکان د ټل دپاره ختم شوی اوس چي بمباری ته راځي نو طیاری ئي هوم ره هسکوی چه په سترگو نه معلومیږی دویری نه، نه په هغوا گرځیدلی شي نه په ځمکه اوس دی حدته رازسیدلی چه هغه خوځیږی، نو لږ فرق باید وخوځیږی دی نه بعد خوانشاالله ددی امکانات د ټل دپاره ختم شوی زه پدی باندی مطمئن او دا دعویم چي انشاالله افغانستان کی به که خدای (ج) کول په نژدی راتلونکی کی دمجاهدینو پلاس اسلامی حکومت جوړیږی اوداله خدای (ج) سره زمونږ تعهددی چي ترڅو مونږ په افغانستان کی اسلامی حکومت نه وی جوړ کړی دمجاهدینو پلاس اسلامی حکومت، دهغه کسانو پلاس چي ددی

جهاد په‌دوران کی‌ئی زمونږ ملت ته‌امتحان‌ورکړی‌وی داسی خلک
نه چه بیازمونږ قوم خرڅ کړی او اسلام ترپښو لاندی کړی :
اوس زمونږ قوم په الفاظو نه‌دوکه کیږی کنه‌نو داد نجیب‌په
بسم‌الله‌الرحمن‌الرحیم اوبه‌من‌الله‌التوفیق خوبه څوک دوکه شوی
وی‌او کس خوبه تللی‌وی دحاجی محمد څمکنی په راتلو سره‌خوبه‌څوک
دوکه شوی‌وی یوڅوک خوبه‌تللی‌ود دمه‌دقوم‌نه څوک نه لاړل‌دااوس
دده خپل آخشی دلته په پاکستان کی دی قوم‌ئی دلته دی دکورڼ
غړی‌ئی دلته‌دی حتی دخپل کور او تبر خلک‌یی دلته دی‌دپکتیا
ورونه خبردی دڅنګینو ورونو نه پوښتنه وکړی حتی خپل
خپلوان‌ئی ندی تللی نورقوم خوپریږده ، داکابل‌رادیوچی همیشه
تبلیغات کوی چی دمصالحی ملی داعلان نه‌پس زمونږ سورو
ورونږ مهاجرینو سورو ورونو غوښتل چی‌بیرتمملکت‌ته‌راوګرځی
افغانستان ته راشی خود پاکستان ملیشی، فوځ هغوی محاصره
کړیدی نه‌ئی پریږدی هره‌ورځ په کابل رادیوکی همداسی
وائی خود دی محاصرو سره سره پنځوس کلدی طورخم ته را
ورسیدلی اومسئولینو دهغوی استقبال وکړ همداسی وائی خوتاسو
اوخدای ووایاست چی‌ددی کمپونو نه څوک تللی؟ پنځوس‌کسان
ندی تللی پ اوس تبره خوپریږده داتا سوله‌خپلو کمپونونه راغلی
یاست‌آیا ستاسو د کمپونو شاوخواکی محاصری شته‌ملیشی اوفوځ
کومه محاصره لګولی‌چی‌ستاسودتللو مخنیوی وکړی الحمدلله‌ددی

سرسرهزمونږ دمها جرینو یو کس هم ندی تللی دغه گرمی کی چه اته خلو یښت درجو ته ئی حرارت رسیدلی دی، په خیموکی شپی ورځی تیروی ولی راضی دی او دا پیغور بی ننگ او بی ایمانی نشی قبلولی چی کافرته دی تسلیم شی ماشومان ئی په دوبی کی له گرمی نه مری په ژمی کی له یخنی نه مری په لوږه او محرومیتو نوکی او دغوتولو مشکلاتوکی ژوندکوی یو حاضرنشو چی دا پیغور او ننگ او بی ایمانی قبوله کړی چی بیرته دی افغانستان ته لاړشی او روسانوته دی تسلیم شی. داخپله ثابتوی چی زمونږ ملت د اسلام نه پرته په بل شی نه راضی کیږی اوس هوشیاردی په خبرونه دوکه کیږی هغه به د اسلامی حکومت ترجوړولو پوری آرام نه کښینی وسله به په ځمکه نه کښیږدی خدای (ج) دی وکړی چی افغانستان آزادشی زمونږ دشهداؤ ارمان ترسره شی، ستاسو ارمان ترسره شی او د دغه مظلومو مشرانو چی خدای دی هغوته اجرورکړی انشاالله دهغوی نوم به په تاریخ کی ثبتیږی دغه مشران چی د خپل قوم څنگ ته و دریدل د اسلام لپاره ئی هرڅه وقف کړل هلته ورته دشمن جبهه ملی پدر وطن جوړوی او دوی ته بلنی ورکوی ولی هغوی آماده نشول چی دا بی ننگی او پیغور قبول کړی خدای (ج) دی دوی ته اجرور کړی دوی ته دی مزید توفیق ورکړی زما اخری خبره ورونوته داده چی د دغه قومونو مشران مظلوم مشران به له خپل کمپ نه په نوبت سره خلک جبهوته لیږی او د ادمشرانو مسولیت دی قوم به تشویق کوی

دجهاد جذبه به ژوندی ساتی، نه به پریږدی چی قوم دوکه شی
دشمن ئی دوکه کړی فریب ورته ورکړی. بله خبره داچی کله
پدی سرحدی منطقو کی جنګ وی لود مجاهدینو لیږلو نه علاوه
چی څوک نشی تللی هغه دی ته تشویق کړی چی چه خپل کورکی دوودی
په پخولو او جبهی ته په لیږلو سره په دی جهادکی برخه واخلی که
دمجاهدو ورته ضرورت هم نوی خو هم ځه دوودی چه ستا د کور تور سری ئی
پخوی ددی اخلاص سره چه دا دمجاهد لپاره پخوم او که خدای کول
پدی کار سره به زه هم په جهاد کی شریکه شم پدی ثواب کی شریکه
شم دادهغی جذبه ژوندی ساتی او له ثواب نه به برخه اخلی او ده ئی
ایمان به هم دغسی تل صاف، قوی وی باید مهاجرین تشویق کړی چه که
نور هه نشی کولای دودی پخه کړی مجاهدینو ته ئی ورو لیږی الحمدلله
تر اوسه پوری هم دغسی هم دا اوس دالفتح په غونډکی مجاهدین دوودی
نه پخوی له هم دی کمپونونه ورځی خومشران بایددی ته
خاصه توجه وکړی دا دیرا همیت لری دادی تو لو مهاجرینو
جذبه ژوندی ساتی او پدی ترتیب به داقوم ټول په جهاد کی
شریک وی دغه موراو خورچی په جهادکی برخه نشی اخستلی
خو په تناره دوودی پخری لدی احساس سره چی
بس د خدای په خاطر که نور څه نشم کولای په
جهادکی برخه نشم اخستلای دایوه دوودی خو پخولی شم دایوه کوره
دوودی خو هلته ولیږم او په اخلاص سره کوښښ کوی چی پاکه

دی‌وی، صافه‌دی وی ترتولو دبه دودی وی انشاالله ددغی‌مور
خورپه غیرکی چه شوک روزل کیږی هغه به یومجاهـلوی کړښښ
وکړی‌چی‌داجذبه تل ژوندی وساتی (تکبیر).
اوهمداراز که دلته مونږ له هرتکلیف سره مخامخ کیږو و
کوښښ وکړو چی له‌انصارو ورونو سره موږویه دمهاجرینو په
شان وی اودهغوی په مقابل کی تحمل ولرو دښمن کوښښ‌کوی
د مهاجرینو او انصارو ترمنځ اختلافات را پیداکړی او
زه خوښـدی باب دغسی توصیه کوم که د مهاجر دریـور
موټرپه سړک روان وی او له هغه طرف نه دیو انصارموټرراغی
که هغه غلطی هم کوی دی دی صبروکړی کوښښ وکړی چه
هغه ته لاره ورکړی خیر دی چی د وه دلیقی وروسته ورسیږی
که هغه ورسره بد برخورد وکړی دی دی صبروکړی تمجاهدی
یولوی مقصد لری پدی خبره ته سپکیږی نـه او پدی ترتیب
ته کـولای شی ددښمن تـولی توطیئی شنډی کړی ته د هغه
یوښـتني تـه ورشـی ورته تکلیف ورسیدو تیوریی وکړه دکمپ
په شاوخواکی دی انصاراوسیږی کوره چی ستانه صد مه ورتمونه
رسیږی ستامال دهغه پتی ته داخل نشی اوستا ماشومـان دهغه
ونه اوبوتی ونه وهی، کوښښ وکړه دازحمت په ځان قبول کړه
دخدای (ج) دپاره خدای به ددی اجر درکړی دادیرلوی کاردی
پدی ترتیب د دښمن یوه لویه توطئه شنډوی مونږ باید کوښښ

وکروچې دالصاروروڼو سرموډېر ښه برخورد اوډېرښه سلوک وی د پاکستان خلکو له موږ سره دېره لویه ښیګڼه کړیده دادېره لویه خبره ده چه دری نیم ملیونه مهاجرین هغوی قبول کړی دادیره ستره خبره ده دهغه په پټی پراته یو دهغه په غره پراته یو دهغه او به موکمی کړی دی هغه ته مشکلات پیداشوی طبیعی خبره ده په لاره کی، په تلوراتلوکی، په موټروکی په بازارونوکی په هر څه کی خامخا هغه ته درد سر اومشکل اضافه شوی دی ستاکورته چی دوه نفرمیلمانه راشی دری څلور ورځی درته پاته شی خامخابه ورنه څه ناڅه په تکلیف کیږی که هر څومره ستاهمت اوچت وی بیاهم دا میلمه پخپله یو بوج وی او که څه هم هغه خپل رزق اوروزی خوری همداراز که څههم موږ ته خپل رزق اوروزی خدای (ج) راکوی خوهغوی له موږ سره په تکلیف دی زموږ دښه برخورد په وجه به ددوی دا تکلیف راکمیږی او دشمن چی غواړی زموږ اودانصارو ورونو ترمنځ اختلافات اوبرخوردونه راپیدا کړی ددی نه مخنیوی کیږی انشاالله خدای به هغه ورځ هم راولی چی دپاکستانی مسلمانو ورونو زړونه هم دافغانستان په آزادی سره اوهلته داسلامی حکومت په جوړیدو سره خوشحاله شی اوو کوری چی دامهاجرین په عزت سره خپل ملک ته بیرته ستانه شی انشاالله هغه ورځ لیرى نده دغسی قومونه ډیر مهاجر شوی خوبیرته په خپل ملک پاک

وروسته وروسته ددی فیصلی په خلاف څه تبلیغات پیل شول.
دلته داخبارونو په سطحه هم، درادیوګانو په سطحه هم، بی بی سی
نه صدای امریکانه هم ددی فیصلی په خلاف څه تبلیغات وشول.
دځینو کسانو رایه دانتخاباتو په هکله رادیوګانوکی منعکس شوه
چی ګویا داکارعملی نه دی اوداهغه احزاب غواړی چی کوشش
کوی خپل قوت اوقدرت خلکوته ثابت کړی اوله دی قراره څه
نور تبلیغات چی ددی فیصلی په خلاف پیل شوی. اوس
مونږ دغسی محسوسوو چی بعضی تنظیمونه غواړی لهددی فیصلی
نهپهشاشی. غواړی دافیصلهماته کړی.
ددی خبری تبلیغات کوی چی اول داکارپه افغانستان کی
عملی کیدای نشی، یاداسی چی که مونږ انتخابات پیل کړو خدای
خبرچی څومره ستر، ستر جنجالونه به را اوچت شی. برخوردونه
شخړی به را اوچتی شی. یاوائی چی په اسلام کی خومونږ
دانتخاباتو اصل نه ګورو دا انتخابات کول او داکثریت فیصله
داځه اسلامی بنیادنه لری داډول استدلالونه کوی. خو هدف
دادی چی ددی فیصلی نه ترشاشي غواړی چی دافیصله ماته کړی.
دغو دوستانو سره خوښه کارداوه چی دافکرئی هلته کړی وی چه
فیصله ئی کوله، کله چی ی د دی فیصلی لاندی امضاء کوله،
هلته ئی باید له ځان سره دا فکر کړی وی چه آیادا فیصله اسلامی
ده که نه؟ دافیصله په افغانستانکي عملی کیدای شي کنه؟ په

میشته شوی تاریخ کی داسی حوادث ډیر تکرار شوی. داسی لدی شوی چی یوملک ته دی کوم قوم مهاجر شوی وی بیادهغه له خپل ملک له دتل لپاره محروم پاته شوی. وی خدای پاک دهغه خپل ملک ته دبیرته ستنید وحتماً بندوبست کړی چی په تاریخ کی سابقه نلری چی پنځه میلیونه قوم دی دیوه ملک څخه هجرت وکړی. څنګه کیدای شی چی پنځه میلیونه خلک دی دخپل ملک دآزادی لپاره لګیاوی اوهغه ملک دی محکوم پاته شی؟ دا پنځه میلیونه مهاجرین که موږ پنځه لکه کورنی وګڼو، اودهرو پنځو کورنیو څخه یوکس جهاد ته ورځی نو یولک مجاهدین ورڅخه جوړیږی. دیولک مجاهدینو لښکر څوک نشی ماتولای.

زمداخبره له خپله ځانه نکوم پیغمبرعلیه السلام فرمایی: «چی زما دامت تعداد دولس زره ته ورسیده، دښمن هغه ته ماتی نشی ورکولای». ستاپیغمبر (ص) ویلی، ته وربانډی ایمان لری صادق پیغمبر. اوس ته پنځه میلیونه یی اوڅولکه مسلح مجاهدین دی په داخل کی دی، انشاالله داجهاد څوک نشی ماتولای، خدای مهربان دی، په خدای مو بروسه ده، خدای ته موا میډدی. خدای (ج) په هرکار قدیر اوتوانادی، «ان الله بالغ امره» خدای پاک خپل کارته رسیدونکی دی. خودهرکار لپاره خدای (ج) یوه نیټه اووخت

تاکلی دی. «قد جعل الله لکل شیٔ قدرا».

خدای (ج) دهرکار لپاره یوه موده یوقدر او اندازه تاکلی ده که نه خدای(ج) دخپل کار تما موونکی دی. څوک دخدای دارادی مخه نشي نیولای. خدای(ج) په هرکارقدیراو توانادی.

انشالله خدای (ج) به زموږ قربانی نه ضایع کوی. دمجاهدینو په لاس به په آزاد افغانستان کی که خدای کول اسلامی حکومت جوړیږی. وآخر دعوا نا ان الحمدلله رب العالمین.

(دحاضرینو تکبیرونه اوشمارونه)

زما وروڼو دلته بعضی سوالونه دی که ستاسی خوښه وی زه به څوته ځوابونه ووایم.

سوال که په پښتووی په پښتوبه یې ځواب وایم او که په دری وی په دری به یې ځواب ورکوم.

سوال اول : روابط حکومت مؤقت وبعدازآن حکومت منتخب که انشالله حزب اسلامی درراس آن قرار خواهد داشت، باروسها بچه منوال خواهد بود ؟

ج : مامیخواهیم در افغانستان حکومت اسلامی تاسیس شود. اینکه در راس حکومت اسلامی چه کسی قرار داشته باشد مهم نیست؟ آنچه برای مامهم است فقط اینست

که شخصیت مسلمانیکه از ناحیهٔ مسلمانی وایمانش مطمئن هستیم ، چنین شخصیتی در رأس حکومت اسلامی آینده قرار بگیرد.

برای‌شما قبلاً عرض کردم که این مهم است که مطابق خواست ملت مؤمن مادوافغانستان‌حکومت‌اسلامی‌بدست‌مجاهدین ساخته شود این که حزب‌اسلامی دررأس آن قرار میگیرد یانه؟ این مربوط به ملت است فیصله آنرا خداوند (ج) خود صادر میکند واگر خداوند (ج) خواست که در افغانستان حکومت اسلامی بدست مجاهدین تأسیس شود، که دراینباره مطمئن‌هستیم، شکی‌هم نداریم، ماکوشش میکنیم که باهمه کشورهای همسایه خود روابط نیک داشته باشیم، ولی روابطخارجی مارااسلام‌تعین میکند وآن مربوط است به آنچه که روسها تابه حال‌علیه ملت‌ما مرتکب شده اند وبه این که در آینده باملت ماچه روشی را اختیار میکند ؟

ماحتماًباین اصرار میکنیم که روسها تمام خسارات جنگ را که درین‌مدت‌طولانی‌برملت ما تحمیل‌کرده، بملت ماپپردازد. براین اصرار میکنیم. واین‌جبران‌خسارت‌یکی‌ازمطالبات ماخواهد بود. به سطح‌ملی‌وبین‌المللی‌براین اصرارخواهیم‌کردکه‌روسهاخسارات‌جنگ راکه برملت‌ماتحمیل کردءاست‌آنراباید بپردازد واین حق مسلم ماست کشور مارا ویران‌کرده است بیش از یک ملیون را

شهید ساخته است. این حق مسلم ملت ماست که خسارات جنگ تحمیلی مذکور را مطالبه کند بهتر است این موضوع را برای آینده بگزاریم بخاطر اینکه اولاً این درست نیست که ما فعلاً درباره آینده خود تصمیم بگیریم .

ثانیاً این معلوم نیست که ما در آینده درچه وضعی قرار داریم ؟ آیا میتوانیم که باروسها بنحوی مقابله کنیم که انتقام گذشتههارا بکشیم ویانه ؟ و این توان راداریم یانه؟ در آینده این توان را کسب میکنیم یانه ؟ بهتر است این رابگذاریم برای آینده.

بهر صورت این امر مسلم است که در آینده روابطخارجی ما برمبنای اسلام تعین خواهد شد. باهمه کشورها، هرچه اسلام حکم میکند. مطابق آن عمل خواهیم کرد تصمیم ما این است که در آینده نه تنها اسلام در همهٔ ابعاد زندگی فردی واجتماعی ما حاکم باشد، بلکه در روابط خارجی ماهم معیار اساسی راتشکیل دادهوتمام روابط خارجی ما بر اساس اسلام تنظیم شود.

سوال دوم یکی از انتقاداتی که بر طرح انتخابات وارد میگردد این است که آیا درامور اجتماعی درانتخاب امیر از زنان هم پرسیده میشود یانه ؟

جواب:

هم تا حال چنان دلیلی نیافتهام که درانتخاب امیر بهرأی زنان

داکار شروع کوی دهغوی سره یویومیل راکتې واوسي بس بل شي ته ضرورت نلرو. ماددغو دوستو ملکو نو دیوچاسره تماس ونیولو ورته ومي ویل چه بس دوس محدودشي ته ضرورت لروبس. خوچاددې جرأت هم ونشوکولای چي مونږ سره اتیا میله راکتې کومک وکړي او هغه ورځي مي هم نه هیریږي چي زمونږ په تولو جبهاتوکي یوراکټ هم نهٔ په ټانکو باندې بهٔ په تمانچو اوپه سر پوشو دزې کولي دمین چل هم نه ورته. باروت ورسره نهٔ.

دنورستان دخلکو قرباني مي په یاد دہ چي فرش، ظرف اودخپلو بنځو کاني به ئي خرڅولې اوکارتوس ئي ورباندې اخیستل. چي په هغه سودمکي دښمن ونشوتوانیدلی (په هغه حالت کي) چه دا جهاد وتکوی اوس نو انشاالله ددې امکان دتل دپاره ختم شوی اوس چي بمباری ته راځي نوطیاری ئي هوسره هسکوی چه پستر گونه معلومیږي دویري نه، نه په هئوا گرځیدلی شي نه په ځمکه اوس دی حد ته رازسیدلی چه هغه خوځیږي، نوفرق باید وخوځیږي دی نه بعد خوانشاالله ددې امکانات دتل دپاره ختم شوي زه پدې باندې مطمئن او دا دویم چي انشاالله افغانستان کي به که خدای (ج) کول په نژدې راتلونکي کي دمجاهدینو پلاش اسلامي حکومت جوړیږي اوداله خدای (ج) سره زمونږ تعهددې چي ترڅو مونږ په افغانستان کي اسلامي حکومت نهٔوی جوړ کړی دمجاهدینو پلاس اسلامي حکومت، دهغه کسانو پلاس چي ددې

فرض است، روزه مثلیکه برمرد فرض است برزن هم فرض است
تعدادزیاد فرایض ووجایب دیگرنیز در خطاب بهمه متوجه است،
این دین برهمه نازل شده است البته دربرخی از مسئولیتها بین زن و
مرد فرق است. این هم با توجه به طبیعت زن ومرد است، مثلاً
زن نمیتواندچون مرد در میدان جنگ بجنگد باین خاطر اسلام
آنرا براوفرض نکرده است. مگر در حالات اضطراری واستثنایی
وقتیکه نفیرعام شود وهمه مجبور شوند سلاح بردارندوجنگ کنند
زن مکلف بجنگ نیست مرد مکلف است برجهاد. درین سلسله
مواردیگری وجوددارد. ماسیخواهیم زن دارای همه حقوق اسلامی
وانسانی خودشود. مااین راهم اعتراف میکنیم که زن درجامعه
ما بیش ازمردمحروم بوده، مردنیز محروم بوده است. مثلاً اوازحق
میراث محروم است اوازحق مهرش محروم است وازخیلی حقوق
دیگر نیز اوازحق تعلیم دین محروم است. درحالیکه اومکلف است که
تمام فرایض را باید یاد بگیرد. این دین آمده است تا اوهم آنچه
را براوفرض یاد بگیرداست. ولی مامی بنیم که از همه این حقوق
خودمحروم شده است من دررابطه باانتخابات ورلی زنان عرض میکنم
که تا حال چنان دلیلی نداریم که بااستناد بآن ثابت کنیم که
زنان میتوانند در انتخابات شرکت کنند حالت اجتماعی مالیز
طوریست که این مسئله راباید کاملاً کنار بگذاریم. این بحث های

جنجال برانگیز رابابد براه نیندازیم کسانیکه این بحث ها راآغاز کرده اندفقط برای تخریب فیصله انتخابات وایجاد جنجال‌ها بوده امیدوارم که درین بحث های جنجال بر انگیز شرکت نکنید. نه‌حالت اجتماعی ما ایجاب میکندونه ضرورتی برای این بحثها وجوددارد ونه عملی وممکن است ونه‌د"لل صریحی برای آن داریم.ماهنوزنمیتوانیم احزاب راقانع کنیم که‌ازمردهارأی گرفته‌شود چه رسدبه زنها.

این ها بحثهائیست که بخاطر ایجاد جنجال ها براه انداخته‌اند. بخاطر ایجاد مشکلات در برابر انتخابات یکی گفت «زنها حق ندارند که در انتخابات شرکت کنند». دیگری گفت که «این رأی‌شخصی‌اوست» وباین ترتیب مشکلی خلق‌شد. تابه این ترتیب همه درین بحث مصروف شوندملت‌مارابابن‌بحث جدید بکشانند و مصروف کنند . که آیا اینکار جایز است یاناجایز است ؟ کدام طرفش درست است ؟ شرکت بکنند یا نکنند ؟ باین ترتیب جنجال جدیدی رابین‌مات ما خلق‌کنند . امیدوارم که این بحثهاراکاملاً کناربگذاریم.

سوال دوم برادر محترم مااین است که تعدادی ازرهبران جهاد عملیات مجاهدین را در داخل خاک روسیه مبنی بر تصمیم خود مجاهدین میدانند ومیگویند ما رهبران جهاد درین

باره هدایت ودستور نداده ایم ونمیگوییم که‌درخاک روسیه‌عملیات شوددرین موردچه نظر دارید .

جواب:این مربوطاست‌بآن رهبرانی که این‌حرفهاراازده‌اند. مادر همهٔ عملیات مجاهدین شریک هستیم و خودرا تبرئه هم نمیکنیم ونه تنها این عمل را محکوم نمیکنیم بلکه تقدیرمیکنیم که برادران دلیروباشهامت ماکه این عملیات رابراه انداخته‌اند، قابل‌هرنوع‌ستایش وتقدیر اند. در صورتیکه قوای روسی ازآنطرف مرزبالای مراکز ما حمله میکنند، مگر ماحق نداریم که بالای مراکز قوای نظامی روسیه درآنطرف مرز حمله کنیم، درحالیکه دوصد هزار سرباز مسلح‌روسی در افغانستان وجود دارد، اوکه خانه مارا در داده وکشور ماراویران کرده‌است، مگرما حق نداریم که این مشکل ودرد سررا برای اوهم درآنجا خلق کنیم؟

مادر حالیکه نمیخواهیم جنگ وسعت بیابد وبخاک روسیه انتقال شود. هنوز این تصمیم رامانگرفته ایم ولی مااین حق رابه فردفرد مجاهدین میدهیم که بالای مراکز قوای‌روسیه‌در آنطرف سرحد که در جنگهای افغانستان ملوث اند، از آنطرف بمبارد میکنند، ازآنطرف زیرآتش میگیرند قطعات شان ازآنطرف سرحد عبور میکنند بالای مراکز مجاهدین حمله میکنند وبر میگردند ، آزادانه بالای‌آن مراکز حمله کنند،مادرین عملیات باآنها شریک هستیم. خداوند مارا درثواب این عملیات باآنها شریک کند.

یوبل ورور داسی سوال کړی چی اوس خوالحمدلله جامعه اکثراً په اسلامی روحیې سمبال ده. انشاالله چی اکثراً حق به مقدارته وسپارلی شی. اوکه خدای ناخواسته جامعه اکثراً حقیقت پرسته نوی، نومسلمانان بایدڅه وکړی ؟

جواب: زما ورونو! موږ داانتخابات په داسی یوه جامعه کی نه کوو چی هلته دی یوه مختلطه جامعه وی. کافر او مسلمان دی په ګډه کی ژوندوکړی موږ وایو چی دمسلمانانو او کافرانو ترمنځ دی په ګډه انتخابات وشی. موږ دمسلمانانو ترمنځ انتخابات غواړو، دمهاجرینو ترمنځ، هغه چی دخدای لپاره یی هجرت کړی، موږ دمجاهدینو ترمنځ انتخابات غواړو. موږ ددغو ترمنځ انتخابات غواړو، داموږ نه دی وایو چی دفساقو فجارو او کافرانو سره دی په ګډه انتخابات وشی، موږ دداسی انتخاباتو طرفدارنه یو.

اوس خومسئله داسی ده چی اکثریت دټولنی مومسلمان دی، مهاجر دی، مجاهد دی، انتخابات د مهاجرینو او مجاهدینو ترمنځ دی. که چیری په اجتماع کی اکثریت فاسدوی هلته بیا طریقه دادمچی اول باید تحریک جوړ شی مسلمانان اسلام ته دعوت شی اودمسلمانانو یوقوت جوړ شی. بیاددغه قوت ترمنځ که چیرته دامیر دانتخاب مسئله وی انتخابات دی کیږی دلته دی اکثریت رایی ته اعتبار ورکول کیږی داسی نه چی [illegible] کسانو سرمچی دتحریک نه بهر دی،



له څخوی سره دی کینی، اکثریت او اقلیت دی وټاکی پیا دی
پدی اساس حکومت جوړ کړی. داغیرجایز دی او موږئی روانه گڼو.
موږ ددی خبری طرفدارانه یو، خود مسلمانانو په ټولنه اواجتماع
کی موږ دانتخاباتوله فیصلی دفاع کووا وفکر کووچی له دی پرته بله
لاره نشته که له چاسره پله داسی لاره وی چی هغه شرعی وی،
جایزه وی ، ددی لپاره نص او دلیل پیداکړی زه به ډیر ورنه
ممنون یم زه به ډیر سپاسگذاره یم چی هغه موږ ته پنوه داسی
لاره راوښیی لدی نه پرته د مسلمانانو په اجتماع کی لکه څنګه
چی اجماع دامت زموږ یواصل دی، لکه چی پیروی د «سواداعظم»
زموږ یو اصل دی، دغسی لکه چی مشوره زموږ هم اصل دی
«داکثریت په خوښه باندی دامیر ټاکل» دا زموږ یو اصل
دی .

موږ په داخل دحزب کی هم دامراعاتوواوپه ټولنه اواجتماع
کی هم ددی خبری مراعات غواړو

خدای مو موفق لره په خدای مو سپارو وآخرو دعوانا
إن الحمدلله رب العالمین.

دی باندی زموږ مشکلات حل کیږی اوکه نوی‌لوی مشکلات منځ ته راوړی؟ ددی سوچ اوفکر وخت‌هماغه وختو، خوداچی اوړی‌فیصله‌کوی تعهد کوی، اوبیا دهغه فیصلی لاندی امضا کوی اوبیا دهغه تعهد نه پیرته گرزی نو دهغوی عقل اوس سرته راغلی. حال داچی ددی خبری فکر باید هلته مخ کی له‌دی نه چه ددی خبری فیصله صادره شی اودنیا تـه اعلان شی، قوم ته‌ابلاغ شی،له دی نه‌مخ کی باید هغوی دافکرکړی وی. زه به انشاء الله په دی باندی په تفصیل سره بحث وکړم چی آیاداکار اسلامی‌دی اوکنه؟ اسلام په دی باب څه وائی؟ داکارعملی دی اوکنه؟ له دی‌کارنه مشکلات را اوچتیږی اوکه زمـوږ مشکلات حل‌کوی؟ په دی دریو خبروباندی‌چی دغه‌کسان‌کوم چی ددی فیصلی مخالفت‌کوی وړباندی زیات استناد کوی په دی باندی به زه انشاءالله بحث وکـړم. خوددی نـه مخکی زه ددی فیصلی اهمیت وروښوته څرگندوم.

زه یقین لرم چی دیوی منتخبی شورابـه نتیجه کی به نه یوازی‌په آینده‌کی دمجاهدو تنظیمونو ترمنځ دمساحانه بـرخـورد مخنیوی کیږی بلکه دقدرت‌دلاس ته راوړلو لپاره به دوسلـوال اخ‌ودب‌مخ‌نیوی‌هم‌کیږی. دوسلی په زوربه څوک دقدرت د لاس ته راوړاو کوشش نه کوی اودا ډیره ستره خبره ده چی روسان ووزی او مونږ تیاره یوه منتخبه شوراونه لرو اومخکی له مخکی

نه‌موحکومت نه‌وي جوړ کړی. په خپلومنځونوکی‌مو په‌دې حکومت باندې اتفاق نه وي کړی ماته ووایاست چې حالت به څنګه وي؟ چې روسان له افغانستان نه ووزی په لکها و مسلح کسان هم‌وي‌اوخاليګاه موجوده وي، شوراهم نه وي حکومت هم نه‌وي په خپلو منځونوکی موږهم په څه شی باندې توافق نه وي کړی هلته به څه پېښیږی؟ داتولوته واضح ده، قتل‌وقتال، خونریزی، بوبل وژل، دقدرت دلاس ته راوړلو لپاره دخپلې وسلې دقوت نه استفاده کول، دغه به زموږ دملت انجام وي. خوکه موږ اوس اوس دا شورا جوړه کړی‌وي، هرچاته موخپل حق ورکړی وي، لکه څنګه چې دعدل تقاضاده، لکه څنګه چې داسلام غوښتنه ده. څوک چې په قوم‌کی زیات موثردی اوپه جهادکی زیات نقش لری هغې ته مزیده موقع ورکوو. دعدالت تقاضا خوداده څوک چې ضعيف اوناتوانه دی اوپه جهادکی نقش نه لری په جهادکی دهغه برخه کمه ده هغه دې‌په خپل داضعیف حق باندې‌قانع‌شی.

لومړی‌خبره خوداده که دا اوس موږ دا شورا جوړه کړو په آینده‌کی به دابر خوردونه نه وي. اودا ډیره ستره خبره ده زه یقين لرم‌که موږ په هرقیمت باندې داکار وکړو نو دابه‌ترهغه نه راکم وي. چې روسان ووزی او موږ په خپلوکی په اخ ودب باندې لګیاو.

دوهمه خبره دا چې اوس‌هم په داخل دافغانستان کی که چیرته دمجاهدینو ترمنځ دمسلحانه برخوردونو صورت وي. ددې

دمخ نیوی لاره هم صرف همدالاره ده. که دغه داقتدار لاس نه راوړلو کشمکش ختم شي. او موږ خپل ملت ته دافکر ورکړوچې خپلومنځونوکی دامسئلهدوسلوپه زوړنه حل کوو بلکې دوروري په فضاکې ئې حل کوو. د مسلحانه برخوردونو مخ نیوی اوس هم دجهاد په دوران کې کیږي. اوس که یو تنظیم د بل سره جنګیږي په دی خاطر چې فکر کوی دوسلی په زوربه بل تکوم بل بهٔ ختموم خوکه موږ قوم ته دا روحیه ورکړوچې نه ، په خپلومنځونوکی زموږ د مسئلې دحل لاردانه ده چې دیوبل پهخلاف له وسلې نه کاراخلو بلکې دا پریږدو قوم ته دادتوم حق دی چې پهچانی اعتمادوکړ هغه دی حکومت وکړی. اوس هم دبرخوردونو مخنیوی کیږی او په آینده کې هم. دادواړه مسئلې ډیری متری دی. که موږ نن دیو مسلمان دوژلو مخنیوي وکړ. موږ ډیر سترکارکړیدی له دی نهعلاوه زمونږقوم نن مشوش دي نهپوهیږي چي روسان ووزي څه به کیږی. هغه دلته یوخالیګاه ګوری حیران دي چې روسان ووزي حکومت به څوک جوړوي. له دی نه داډه اومطمئن نه دی چې دروسانو له وتلونه بعدبه د احزابو ترمنځ څه کیږی. له همدغی خالیګاه نه په استفادي سره ګوری چې کله په امریکاکې جلاوطن حکومت اعلانشی کله په ډیلی کې جلاوطن حکومت جوړشی. کله په المان کې او اروپایی ملکونوکې جلاوطن حکومت اعلانشی. کله بی، بی، سی موږ ته

۲۱

# دقوم مشرانو ته

# دورور حکمتیار

# وینا



گرانو لوستوالو !

دا ورکوټی رساله چې ستاسی مخې ته پرته ده د افغانستان داسلامی حزب دمجاهد آمیر ورور«حکمتیار» دهغې وینا متن دی چې د ۱۳۶۶ هش دجوزا دمیاشتې په ۲۱ مه نیټه ئې د قوم مشرانو ته دنصرت مینی په جامع جوماتکی دیوی غونډی په ترڅ کی کړی وه.

پدې ویناکی دحزب امیر دانقلاب په روانو حالاتو اوپدی رابطه دقوم دمشرانو دمسئولیت اورسالت په باب مفصله رڼا اچولی ده

د افغانستان اسلامی حزب د ارشاد اوفرهنگ کمیسیون

دکتاب نوم : دقوم‌مشرانوته دورور«حکمتیار» وینا

خپرونکی اداره : دشهادت نشراتی‌ارگان

اهتمام : د چاپ اوصحافت مدیریت

شمیر : ۵۰۰۰ توکه

لمړی‌چاپ : کال ۱۳۶۶